بسم الله الرحمن الرحیم

**د کتاب ځانګړنې:**

د کتاب نوم: **پل سوخته د دنیا پای**

لیکوال: **نستوه نادري**

ژباړن: **محمدعمرستانکزی**

خپرندوی: **سروش کتابپلورنځی**

پښتی: **حسیب الرحمن ساحل**

د خپرونو لړ: **۹۲**

شمېر: **۱۰۰۰ ټوکه**

چاپ وار: **لومړی**

چاپ کال: **۲۰۲۲**

ISBN 978-9936-647-66-4



ادرس: سروش کتابپلورنځی، مینه یار مارکېټ، د دریمې ناحیې کوڅې ته نږدې، میرویس میدان «کوټه سنګي» کابل - افغانستان.

Soroch Bookstore

۰۷۸۵۲۰۰۲۱۲

# د لیکوال یادښت

دغه کتاب چې ستاسو په لاس کې دی، لغات او کلمې یې په یوه ویجاړ او له غمونو ډک ښار په خنډو کې د ژوند د هغو دردوونکو او وژونکو تیارو د لیکلو په پار لاس په لاس شوي څو یو متن شي او هغه کړاوونه او دردونه انځور کړي کوم چې تراوسه موږ نه یو ورسره مخ شوي، باید ووایم چې د دغه کتاب له لیکلو څخه زما یواځینی هدف د روږدیتوب په لومه کې د انسانانو د ژوند د پټو اړخونو او د دې تولنې په مینځ کې زما د اووه کلن تدریجي مرگ د کیسې وړاندې کول دي.

د دې یادښتونو یوه برخه د پل سوخته په تیارو او ځینې برخې یې هم د روږدیتوب د پرېښودو او درملنې روغتونونو کې له افغانستان څخه ترهنده لیکل شوي دي او وروستی کرښې یې د بشپړې روغتیا او له روږدیتوب څخه د ښه والي پر وخت لیکل شوې دي، هڅه مې کړې ده څو له عامیانه ادبیاتو څخه تر لوړو کوم چې د روږدو، مافیا او مواد پلورونکو په مینځ کې تبادله کېدل کار واخلم، په همدې پار له تاسو قدرمن لوستونکي څخه هیله کوم چې املایي، لیکلې ستونزې یې په ما پورې ونه تړئ.

په خورا درنښت

نستوه نادري

# پیلیزه

«بد مرغي»

کابل سیند د تیپي تمساح په څېر د کابل له زړه څخه ورو ورو د ښار مرکز خواته په حرکت و. کله چې پُل سوخته ته نږدې رسېده، د پله دواړو خواووته هغه راټول شوي او ژوبل شوي اشخاص یې په خپله لمن کې ښوودل چې له ځان سره یې ډېر ژور دردونه او ترخې کیسې پټې ساتلې وې.

پُل سوخته له هغه ښامار سره ورته والی درلود چې سینه یې د سیند په ناولو اوبو پورې نښتې وي او فکر دې کاوه چې پرسینه باندې یې د ناولو اوبو له تېرېدو څخه خوند اخیسته، خوله یې د سیاه چالې (تور سوري) په څېر چې تل یې معلوم نه دی وهم ناکه او ډاروونکې خلاصه وه، که چېرې یې خولې ته د ننه کېدلې هرڅه له منځه تلل ژوند، انسانیت، وخت، ځای، خیال، هیله او نور هرڅه پای ته رسېدل...

هرڅه خپل وروستي گامونه اخیستل او پای ته رسېدل، خو یو څه پیل کېدل: هغه ترخه او وینه بهوونکې کیسه ده چې وروسته په سرطان بدلېده او ټول انساني وجود یې نیوه، د انسان تېر ته یې ورو ورو ربښه ځغلوله چې راتلونکی او برخلیک یې تیاره او تریخ دی؛ پُل سوخته د مقناطیس په څېر داسې قوي و، کله به یې چې تاسو په خپله غېږ کې ونیولی، د هغې غوښې په څېر چې هډوکی یې پوښلی وي په بدن پورې مو نیښته، بل هېڅ ځواک نه شوی کولای چې له منگولو څخه یې تاسو وژغوري، د هغه تیاره سوري په څېر و چې د ژغورلو له پاره مو که هر څومره لاس او پښې وهلی لا ژور تللی او په هغه تاریکی کې خښېدلی او درد مو لا قوت مونده.

زه نستوه نادري، د کابل په پل سوخته کې د دردمن ژوندي له بېلګو او د ژوند د تریخ حقیقت له عیني شاهدانو څخه یم، اوس مې وغوښتل هغه څه چې نږدې یوه لسیزه زما د سترګو پررورانډې واقع شوي دي او وروسته مې په ذهن کې د ژوند د یوې تیارې پدیدې په څېر د روږدیتوب د فولادي قلم او اوسپنیز څټک په واسطه حک شوي دي بیان کړم.

څو وکولای شم چې د مافیایي کابل یو بل تیاره، پټ او نا څرګند اړخ تاسو ته وښیم او تاسو چې تر اوسه پورې د دغه وحشي طوفان منګولو کې نه یی اسیر شوي او تاسو چې تر اوسه پورې د یوه روږدي د دې ټولو بدبختیو مصیبت په اړه نه پوهېږی او لبواله یاست چې پوه شی.

هغه کرښې چې په دې برخه کې لیکم ډېرې دردونکې دي، د دې هرې کرښې د لیکلو له پاره مې ډېر کړاوونه او ستونزې ګاللې دي څو و کولای شم چې خپل غم په لیکلې بڼه وړاندې کړلای شم او د هغه خوږو شېبو جبران وکولای شم چې له بده مرغه په ناوړه حالت کې راباندې تېرې شوې دي او یا هغه نړۍ چې زما د سترګو پر وړاندې ترسیم کېږي او غمونه مې یې ځوروي چې ګیر پکې راغلی وم، زه هڅه کوم چې له ځانه یې لرې کړم او خلکو ته یې ورسوم؛ حیران پاتې یم نه پوهېږم چې د روږدیتوب د تیاره کوهي له کوم ځای څخه پیل وکړم؟! له هرې برخې چې پیل کوم، په پای کې له یوې لویې تراژیدۍ او ذهني کشمکش سره مخ کېږم، هغه داسې ځای و، چې انسانان په کې دردېدل او داسې به پراته وو لکه روح یې چې کډې ترې کړې وي، زه د هغه دردونو ستونزو وړاندوینه نه شم کولای، څکه ډېرې اوږدې او پلنې ستونزې هلته موجودې وې.

د ټولو سختیو، دردونو او غمونو سره سره چې د دې ټولګې د لیکلو په لړ کې ما ته مخې ته راغلل، بیا هم خوښ یم چې د «پرند» خپرندویه ټولنې

او مېرمن زحل سیرت په سمون سره مې وکولای شول، چې د چاپ په گانه یې سمبال کړم.

دا زما له پاره چې یوه لسیزه مې د بدبختیتو، هېرولو او وېره کې تېره کړې ده ډېر ستر او ارزښتمن کار دی؛ تاسې درانه دوستان چې دغه لیکنه لولی او هغه نوي تنکي ماشومانو ته مو چې تراوسه د ژوند د ښو او بدو په اړه په څه نه پوهېږي یوه لویه بېلگه او عبرت شي؛ څو د روږدیتوب له منگولو څخه د خپل ځان او کورنۍ د ساتلو په فکر کې شی.

هغه ورځ چې سهار یې سوړ، تریخ او ساه نیوونکی و، پر پُل سوخته باندې د طوفان د خاموشۍ چوپتیا خپره وه، کله کله به د قمار وهونکو ښکنځلو دا له مینځه وړونکې چوپتیا ماتوله، وروسته به بیا ځلې د ټولو په رگونو او بدن چوپتیا حاکمه کېده. هر روږدی په یوه څنډه کې سر ښکته ناست او د خپل ځان په اړه سوچ وړی و، په خپلو یادونو کې ډوب و، هغه یو کس چې ماته ډېر نږدې و ترې ومې پوښتل: څه خبره ده؟

وویل: راټولونه راځي، ټاکل شوې وه چې په مخدره توکو روږدو (Finex) د درملنې د زر بستریز او پینځه سوه بستریز روغتونو کار کوونکي راشي، زه هم له ځایه پورته شوم، د ښینښې پیپ مې په لاس کې و، د نیم ساعت له پاره مې پیپ ته ونه کتل، د هغه ورځو په یاد کې لاړم چې هغه وخت زه په نشه یي توکو نه وم روږدی، وروسته مې سترگې له اوښکو ډکې شوې، دردوونکې اوښکې د هغه دردونو څخه چې نه شم کولی ټول دلته بیان کړم.

خپلې شاوخوا ته مې وکتل، چې د تېر په څېر د مخدره توکو پیپ او نې چې خپلې خواته گوري، ژاړي د قمار وهونکو غږونه مو اورېدل، د لویو او گاونډیو ودانیو د سپټیک پایپونو یو ډول ناوړه لوی غږ ټول ځای نیولی و او

بس؛ یو ځلې چوپتیا ماته شوه د نشه یي توکو د یو شمېر کارکوونکو او عسکرو وحشي او نازک غږ ټول پُل ونیوه: " پورته شئ مرده گاوانو، بې ناموسانو، حرامیانو، مورگانې، خویندې او ښځې مو...".

ټول له خپل ځایه پورته شول او په تېښته بریالي شول، مامورینو په خپل وحشتناک او لوړ غږ ښکنځلې کولې، د پسرلي - زرغون فصل لومړۍ ورځې وې، د کابل سیند اوبو په بې ساري توگه د مستۍ څپې وهلې، ډېرو کسانو په اوبو کې ځانونه واچول، اوبو له ځانه سره یوړل او یو شمېر هم د پُل لوېدیځ خواته په تېښته کې وو، عسکرو خپلې تمانچې له کمربندونو را وایستلې او ټولو په بېړه ډزې پیل کړې.

زه له خپل ځای څخه پورته شوم غوښتل مې وتښتم؛ چې په ناڅاپي توگه د یوې مېرمنې نرم او لطیف غږ چې له درد او غم څخه ډک و زما پام یې خپل ځان ته واړوه، "نستوه جانه، نستوه جانه، زما لاس ونیسه"، کله چې ځیر شوم گورم چې خاله فاطمه وه، د لوړې ونې او ښه هیکل درلودونکې مېرمن چې له بده مرغه حامله هم وه، لاس مې یې ونیوه، څنگ ته یې دری کڅوړې هم ایښې وې.

خپلې کڅوړې یې ماته راکړې او جوړه د پله وروستۍ خواته هغې خیمې ته چې د پل سوخته د تر ټولو خونړي روږدي د کاکا په زوی یادېده روان شوو، غوښتل مې گړندی لاړ شم چې خاله فاطمې وویل: په کرار...

په ډېر تکلیف مو ځان د خېمې داخل ته ورساوه، خاله فاطمې ته مې وویل: دلته کښېنه! که چېرې مامورین راغلل ورته ووایه چې حامله یم او روغتون ته نه شم تللی؛ زه له تا څخه لرې هغه تیاره ځای کې پټېږم څو تاته څوک زیان ونه رسوي.

څو دقیقې وروسته د نشه یي توکو کارکوونکي خېمې ته نږدې شول، د خاله فاطمې په لیدو سره په خېمه کې وګرځېدل او زه ناچاره د خېمې له شاه څخه پورته شوم، معروف خان او دری تنه نور کار کوونکي ماته په داسې حال کې رانږدې شول، چې لرګي یې په لاسو کې وو. د دوی له ډلې یوه غوښتل چې ما په لرګي ووهي، خو معروف خان اجازه ور نه کړه. وویل: ورځه د خېمې داخل ته لاړشه، د خاله فاطمې څنګ ته، که هر څه وویل ورته ووایه چې ماته معروف خان اجازه راکړې ده، بیا را وګرځېدل او پرلپسې یې څو ډزې وکړې.

په نشه یي موادو د روږدو ټول شته یې وسوځول، کله چې د ګاز بالونونو اور واخیست په پرلپسې توګه یې چاودنې کولې، داسې تصور کېده چې پُل سوخته په راکټونو ویشتل کېږي، مامورینو له موږ څخه واټن اخیسته او د روږدو مظلومانه غږونه او چیغې تر لرې پرتو سیمو پورې اورېدل کېدې، خاله فاطمې زما خوا ته وکتل او وویل:

"مننه نستوه جانه، که ته نه وی شاید زما ژوند پای ته رسېدلی وی".

ومې ویل: نه خاله فاطمې ما هېڅ کار نه دی کړی، لوی رب له تاسره مرسته وکړه، زه هسې یوه وسیله او بهانه شوم.

خاله فاطمې تل ډېر تېز عطر کارول، ټوله خېمه د خاله فاطمې د تېزو عطرو بوی په سر نیولې وه، ومې ویل: خاله فاطمې، مور مې چې کوم وخت د انې کیسه راته کوي، وایي: یوه لوړه، سپینه، ښکلې او لوی هیکل لرونکې ښځه وه؛ هر وخت چې تا وینم فکر او احساس کوم چې ته زما هماغه انې یې.

خاله فاطمې په ټوکه کې وویل: زه ډېره زړه شوې یم؟ ومې ویل: نه خاله فاطمې ته ډېره ځوانه یې؛ زما لید لوری او احساس ستا پر وړاندې همدا دی.

وروسته مې وغوښتل چې د دې خبرو لوری بدل شي، پوښتنه مې ترې وکړه: ته ولې او څنګه په دې توکو روږدې شوې؟

خاله فاطمې وویل: "د خپل لومړني خاوند له امله، ناځوانه او بې غیرته نور څه ونه شوی کولای پرته له دې چې زه یې روږدې کړم، څو د هغه تابع شم، دا خبرې یې په داسې حالت کې کولې چې له سترګو یې اوښکې بهېدلې".

ویې ویل: زه یوازې یوه نجلۍ نه وم، په خان آباد کې د شاوخوا ګاونډیان او خلک زما مینوال وو، خو یوه سړي چې دوه مېرمنې یې هم درلودې او زموږ په سیمه کې قوماندان و، څو ځلې یې زه په کوڅه کې لیدلې وم او بالاخره یې جرګه راولېږله، ما دې نه ځواب ورکړ، څو چې یوه شپه یې زما پلار په کوڅه کې د ټوپک په قنداغ وواهه" او ویې ویل: که چېرې دې لور ماته را نه کړې، بل ځل دې په مرمۍ په سر ولم، د شپې مې پلار په وینو ککړ کورته راغی او د پېښې په اړه یې کیسه راته وکړه، مجبوره شوم هغه مې د خاوند په توګه ومانه.

وروسته یې چې هر څو کوښښ وکړ چې زه له زړه ورته چمتو او له هغه سره نږدې شم؛ ما یې خبره نه منله او په حقیقت کې مې په هېڅ ډول زړه نه منله چې زه له ده سره نږدې واوسم، څو چې ناروغه شوم او یوه شپه یې هېرویین راته را وړل چې ستا له پاره فلانې «ملا» ته تللی وم او دا دودي (شوېست) یې راکړ چې دود یې کړه، په دې خاطر چې پېریان دې له بدن څخه بهر شي نو دا باید د سیګرېټ په ډول وڅکوې، کله مې چې یو دوه

دوده کش کړل (وخکول) حال مې يې بدل کړ، داسې احساس مې کاوه چې اسمان ته پورته شوم.

ده په چيغو پيل وکړ، هلئ مرسته وکړئ چې مړه کېږي... زه يې هيښ! کړم خاله فاطمې خپلې کيسې ته دوام ورکاوه، په همدې وخت کې مې د سختو چيغو غږ تر غوږو شو، له خپل ځای څخه اوچت شوم، له خېمې څخه بهر ته ووتلم، گورم چې دری روږدي کسان د اوبو پرمخ د ساه ورکولو په حالت کې و، اوبو په ډېرې تېزۍ سره هغوی وړل او نورو روږدو چيغې وهلې چې ونيسئ خو هېڅ مرسته نه شوی کولای، ځکه چې اوبه ډېرې او تېزې وې. د خاله فاطمې کيسه پاتې وه... بېرته خېمې ته راغلم، خاله ته مې وويل: وبښئ، چې ته خپه شوې نه وې، نوره کيسه دې راته وکړه، بيا څه وشول؟

ويې ويل: "هغه ناځوانه زه په بشپړ ډول روږدې کړم... موده وروسته يې طلاق راکړ او وروسته مې په پُل سوخته کې له بل چا سره واده وکړ، چې له هغه څخه د اووه مياشتو ماشوم په گېډه کې لرم، خاوند مې يې اوس د جنگلک د روږدو انسانانو روغتون ته بېولی دی.

دا وخت د خاله فاطمې له سترگو اوښکې بهېدلې، ورته ومې ويل: ته اتله يې خاله فاطمې، زما نن له خپل ځان څخه کرکه وشوه، دا موږ نارينه څومره پست او ناوړه کېدلای شوو؟... داسې ظلم خو څوک نه کوي...

څو کسانو غږ وکړ: راټولونه پای ته ورسېده، کله موږ چې پوښتنه وکړه، ټولوونکو سل کسان له ځان سره وړي وو، شل تنه په اوبو کې ډوب او ورک شوي وو او دری تنه يې په ډزو وژلي وو. د دې ترخنگ زرگونه تنه نور ژور ډوب شوي وو خو بېرته راختلي وو، ډېر کسان د پل سوخته او روغتون ترمنځ چې کوم واټن دی، په دې ساحه کې وژل شوي او يا هم په ډېر بد

حالت کې پراته وو. دا له غم او درد ډکه شخه کې کیسې په تیاره، سکوت، بې ژبې او ناتوانه ژوند کې پای ته رسېږي او د روږدیتوب (اعتیاد) دغه وحشي ویروس ځلور مېلیونه کسان په خپله خیرنه لمن کې رانیولي وو.



## لومړی کیسه: «زه څه ډول روږدی شوم؟»

په حقیقت کې د خپلو ځواکمنو تلویزیوني خپرونو په لوړه سطحه کې واقع وم، زما پروګرامونه د نورین د څېړنیز او پرمختیایي ژورنالېزم د تېم لخوا چې د هغه په راس کې هم خپله واقع وم، هره اونۍ یې جالبې پېښې رامنځته کولې او زما د پروګرامونو له لارې د نورین تلویزیون رییس هم ستر باور او نوم خپل کړی و، په ورته وخت کې زما برنامو یا پروګرامونو له لارې نورین تلویزیون ته ډېر اعلانونه راتولېدل خو له بده مرغه بیا هم د نورین تلویزیون رئیس زما معاش پر ټاکلي وخت نه را کاوه، په دریو میاشتو کې یې ما او نورو کار کوونکو ته د یوې میاشت معاش را کاوه، د پیسو پرستۍ حس یې ورځ تر بلې زیاتېده او ما په یو ډول سره د نورین تلویزیون د رئیس د ناځوانیو پر وړاندې ځان غلی نیولی و، شهرت هم یو عجیب څیز و، چې زه یې هڅولم څو په خطرناکو پروګرامونو کې ځان څرګند کړم.

یوه خبره وه! که څه هم چې معاش یې په خپل وخت نه راکاوه، خو زه ورځ تر بلې مطرح کېدم او شخصیت مې لا ځواکمن کېده.

محمود رهګذر، د هېواد د سینما ګرانو له جملې څخه و، زه له هغه سره د یوه فلم په پرانیسته کې اشنا شوم، وروسته هغه څو ځلې زه مېلمه کړم، په هغه وخت کې نوموړي په بادام باغ کې یوه کوټه نیولې وه، زه نه پوهېږم چې ده دا کوټه په څه خاطر او څه ډول نیولې وه... زه به یې هر وخت هلته وربللم او په ګډه به مو په نوموړې کوټه کې شراب څښل.

د نورین تلویزیون رئیس په داسې حال کې چې زما د ښو پروګرامونو له برکته یې ډېرې پیسې ترلاسه کولې، هغه به یې په خپلو ساعت تېریو

مصرفولې، وخت ناوخت به يې تاجکستان ته سفر کاوه او هلته به په مېلو او چړچو ورک و! دی چې کله له يوه سفر څخه کابل ته راغی ماته يې يوه ډالۍ راوړې وه، يوه شپه مې د بابه جانيانو«صوفيانو» په اړه يوه څېړنيزه خپرونه پرلاره اچولې وه، دی هم له تاجکستان څخه افغانستان ته راغلی و، دا وخت زما خپرونې په ژوندۍ بڼه خپرېدې، د خپرونې د لومړۍ برخې له پای ته رسېدو وروسته، د دفتر اجير (خدمه) ماته ستډيو ته راغی او ويې ويل: رئيس صيب وايي چې کله دې خپرونه پای ته ورسوله بيا زما خواته راشه.

د دفتر په څلورم وروستي منزل کې يې د مهمانۍ ښېله کوټه درلوده، کله چې د خپرونې لومړۍ برخه پای ته ورسېده، زه هم ورجگ شوم، کله مې چې د کوټې دروازه پرانيسته، گورم چې له خپلو دوه نورو ملگرو سره ناست دی او په گرمه هوا کې څلور لينه برېښنايي بخارۍ روښانه ده، دا زما له پاره ډېره جالبه وه، ومې ويل: رئيس صيب څه شوي دي؟ فکر کوم په تېروتنې سره مو د پکې پرځای بخارۍ روښانه کړې ده؟!

مسکی شو، د خپلو ملگرو خواته يې وکتل او ويې ويل: او لېونيه هغه خوند چې په بخارۍ کې دی په باد پکه کې نه شته، وروسته درې واړو وخندل، مايې سترگو ته وکتل چې سترگې يې تنگې يا کوچنۍ شوې وې، لاندې غاښونه يې له پاسنيو غاښونو سره نيښتي وو او په ډېر قوت يې غاښونه پر يو او بل مښل، تردې چې د غاښونو د کړپهار غږ يې اورېدل کېده.

رئيس له خپل جېب څخه يوه کوچنۍ کڅوړه راوايسته او وويل:

ښاغلی نستوه! پوهېږې دا هرڅه سل ډالره قېمت لري، بسنه کوي چې له دې څخه یو نوشیجان کړې او په ژوند جنت ته لاړ شې. ومې ویل: قدرمن رئیس صیب دا څه دي؟! ویې ویل: دا تابلېت «k» نومېږي، فضایي راکټ دی، سړی مستقیم جنت ته بیایي، یو دانه مې ترې واخیست، گورم چې خړ (خاکستري) رنگ یې درلود ببرته مې ورکړ، ورته ومې ویل: مهرباني وکړئ.

په مسکا سره یې راته وویل چې ستا مال دی، وایې خله نوشیجان یې کړه، ومې ویل: رئیس صیب! زه په تا باور لرم مگر خپله پوهېږې چې زما له نشه یي توکو څخه کرکه کېږي.

په جدیت سره یې راته وویل:

ښاغلی نستوه!

دا مخدر توکي نه دي، ته چې څه وینې دا د رئیسی نشه ده، سل ډالره یې قېمت دی او بیا زه خو کوم خراب شی تا ته نه درکوم.

نه پوهېږم هغه مهال مې ولې په رئیس لیونی باور درلود، ومې ویل: سمه ده رئیس صیب، زه په تاسو باور لرم خو دا کار شاید موږ ټول روږدي کړي، مسکی شو ویې ویل:

ته واخله ووهه د وهلو سر پورته دی... وروسته یې وویل که روږدی شوې مسؤلیت او جرم یې زما په غاړه. ملگرو یې هم وهڅولم او گولۍ مې په خوله کې واچوله، دومره ترخه وه، فکر مې کاوه چې د ټولې نړۍ تریخوالی په همدې گولۍ کې دی، گولۍ مې په خوله کې وه، دوی بیا بیا سپارښتنه راته کوله چې شین چای وڅښه.

موده وروسته یو ښه احساس راته پیدا شو، د هر گیلاس چای په څښلو سره مې داسې احساس کاوه چې د الله او جنت لوړو ته پرواز کوم، ټوله دنیا په یوځل سره راته لذت بښونکې او له مهربانۍ ډکه شوه، یو ځل مې احساس وکړ، چې غاښونه مې سره نیښتي دي، ژامو مې درد پیل کړ، سترگې مې تنگې شوې وې په پرلپسې توگه مو چای څښه او له گرمۍ څخه مو خوند اخیسته.

خپل لاسي ساعت ته مې اصلاً ور فکر نه وه، زه د شپې اته بجې له دوی سره یو ځای شوم، هېڅ مې خپل ساعت ته نه کتلي، د شپې اته بجې له دوی سره ملگری شوم، دری نورې شپې مې له هغوی سره تېرې کړې وې، خو زه نه وم ورباندې پوه شوی. د شپې وروستي وختونه و او شپه په ډېره چټکۍ سره تېره شوې وه، داسې فکر مې کاوه چې یوه دقیقه تېره شوې ده، خوب اصلاً نه و، ډېرې بې خوبۍ په ټولو خپلې وزرې غوړولې وې، د سهار تر اووه بجو پورې یو ځای پاتې شوو، اشتها له منځه تللې وه، ما له دوی څخه اجازه واخیسته څو کورته لاړشم، رئیس هم غوښتل چې خپل کورته لاړ شي، وضعیت بلکل بدل شوی و، نشې بې هوښه کړي وو، ډېرې ځان دردۍ او خستگۍ ټول راگیر کړي وو.

کله چې د نورین تلویزیون انگړ ته ورسېدم، د قدم وهلو نوره شیمه په ما کې نه وه پاتې، ډېره سخته راته تمامېده، زه هغه وخت د نورین تلویزیون د خبرنیز ټیم مسؤل وم، ټولو په نورین کې زه لیدلم او د مدیر صیب په نوم یې غږ را باندې کاوه، زما له همکارانو یو تن نږدې راغی ویې ویل: څه شوي مدیر صیب؟

ځواب مې ورکړ: ځان مې درد کوي، زما موټر چلوونکي نثار ته غږ وکړه، نثار راغی ویې ویل: ټوله شپه په دفتر کې پاتې شوی، شمېره مو غلې وه او زه هم خپل کورته لاړم... مور دې څو ځلې اړیکه ونیوله او ستا پوښتنه یې وکړه؛ ما ورته وویل چې نستوه نن شپه په دفتر کې پاتې دی، ما ورته وویل: لاس مې ونیسه خو ده بیا پوښتنې کولې چې ولې څه شوي دي؟ ما ورته وویل: وجود مې ډېر سخت درد کوي، په تعجب سره یې وویل: پرون سهار خو ته رک روغ او نورمال وې، اوس ولې داسې ضعیف شوی یې؟

ما ورته وویل: چې نه پوهېږم لاس مې ونیسه، په موټر کې مې کښېنوه او کورته مې ورسوه؛ موټر له دفتر څخه د کور پر لور په ډېره ګړندۍ توګه په حرکت کې و، خو ما داسې فکر کاوه چې موټر چلوونکی مې اوس هم ډېر ورو روان دی، ورته په غوسه شوم، په لوړ غږ مې ورته وویل: موټر ولې سم نه ځغلوې؟ ده وویل: ښاغلی مدیر صیب له دې څخه زیات تېز تګ (سرعت) یا زما ژوند اخلي او یا هم ستا، د ډېر ژور درد له امله نږدې و چې چیغې ووهم، فکر مې کاوه چې یو ځنځیر لرونکی لوی ټانک زما په وجو له پاسه تېر شوی دی په پښو کې مې ډېر سخت او ژور درد احساسوه.

کورته ورسېدم، دروازه مې وټکوله... چې مورجانې مې دروازه را خلاصه کړه او راته ویې ویل: خیریت و نستوه جانه؟ د شپې ولې کورته رانغلې؟ یوازې همدومره مې ورته وویل: مورجانې ناروغ وم.

خپلې خونې ته لاړم، د ډېرې ژورې ځان دردۍ له امله ویده شوم، د مازیګر شاوخوا شپږ بجې مورجانې له خوبه ویښ کړم، خو بیا مې هم حالت ډېر خراب و او دې ستړیا احساس مې کاوه. هغه مهال د شپې له اووه بجو تر اتو بجو پورې د سلام سرزمین من خپرونه په ژوندۍ بڼه خپرېدله،

مورجانې مې په خواږه غږ راته غږ وکړ موټروان دې درپسې راغلی دی
خپرونې ته نه ځې؟ ورته ومې ویل ځم.

ډېر ستومانه وم، دومره ستومانه چې د کښېناستلو توان مې هم نه
درلوده، هوډ مې وکړ چې دفتر ته لاړ شم او رئیس ته ووایم، زه نه شم کولای
چې نن شپه خپرونه مخته یوسم، کله چې دفتر ته ورسېدم ومې پوښتل،
رئیس چېرته دی؟ ویې ویل: په څلورم پوړ څرخي خونه کې دی، همدغه
اتمه شمېره خونه د رئیس وه، په ډېر خراب وضعیت او بې حالۍ سره د
رئیس کوټې ته د ننه شوم، گورم چې رئیس له خپلو هماغه دوه ملگرو سره
خوښ ناست دی، برقي بخارۍ ورته روښانه ده او په پرلپسې توگه شین
چای څښي. ورته ومې ویل: رئیس صیب! زه نه شم کولای چې نن شپه
خپرونه مخته یوسم، په غوسه شو، ویې ویل ولې ښاغلی نستوه؟

ټول خلک په ډېره لېوالتیا سره ستا د خپرونې وړاندې کولو په پار چې د
(بابه جانیانو) په اړه ده د انتظار شېبې شمېري، ځواب مې ورکړ: زه ډېر
ستومانه او کم انرژي یم، نو په همدې خاطر ما وبښه!

دی مسکی شو، ویې ویل: ووایه چې تېل نه لرم ښاغلی نستوه.

د دوه ملگرو له جملې څخه یې یوه په مسکا سره له خپل جیب څخه بل
تابلېت k راوایست او د پېغور په ډول یې وویل چې دا دي واخله اتیا لېتره
تېل، دا ځل پرته له دې چې ووایم نه! نه یې اخلم وا مې خیسته او خولې
ته مې واچوله، دومره ترخه وه، چې پوښتنه مه کوئ، څو گیلاسه چای مې
ورپسې وڅښه او وروسته داسې حس راته پیدا شو چې هېڅ خبره نه شته
او فکر مې کاوه چې مخکینۍ ستوماني له دروغو پرته بل څه نه و.

د هغه ماشین په څېر شوم چې کلونه وروسته دویم ځلي روښانه شوی وي، خپل ټول قوت او پرځان اتکا مې بېرته ترلاسه کړه، په ځواکمنه توګه مې د ساعت خواته وکتل چې د شپې دوه کم اووه بجې دي.

رئیس ته مې وویل: زه ځم ستېډیو ته، ویې ویل ورځه لاړ شه، کله چې لاړم ګورم چې د خپرونې څو تنه مېلمانه هم راغلي وو، خپرونه مې په ډېره ښه او ځواکمنه توګه پای ته ورسوله، تردې حده قوي خپرونه وه چې د بابه جانیانو ټیم یې ډېر قهرجن کړی و... کله چې له ستېډیو څخه څرخي خونې ته د رئیس څنګ ته راغلم ګورم چې د خپرونې په شمېره باندې د رئیس دفتر ته پرلپسې زنګونه راغلي وو، چې څنګه دې ننه شوم، رئیس په مسکا راته وویل:

اتله! بیا دې انقلاب رامنځته کړی دی، له خپرونې دوه ساعته وروسته دفتر ته تلفون ته پرلپسې زنګو راتلل، په څرخي خونه او د حرارت په لوړه درجه کې د تابلېټ k نشه یو ځل بیا ډېره او ځواکمنه شوه، خپل موټروان ته مې زنګ وکړ او ورته ومې ویل چې مور ته مې زنګ ووهه او ورته ووایه چې نن شپه بیا هم نستوه کورته نه راځي کار لري، ته هم خپل کورته لاړ شه، زه نن شپه هم په دفتر کې پاتې کېږم، موټروان مې ډېره جالبه خبره وکړه ویې ویل: مدیر صیب! پرون دې هم مور پوښتنې کولې، چې نه پوهېږم په نستوه څه شوي دي؟ ولې دا ډول دی؟ پرون یې حالت ډېر خراب و او تر ډېره ویده و، څه ورباندې شوي دي؟

غوره ده چې کورته لاړ شې مدیرصیب، زه ورته په غوسه شوم، ورته ومې ویل زما په کار کې ستا کار نه شته، تلفون مې غلی کړ او بیا هم د تېرې شپې په شان تر سهاره په ډېر خوند تېره شوه. شین چای او «تابلېټ k»

نشې خپل تاثیرات او خوند درلود، د سهار خواته نشې بیا زور واخیست او پر ټول بدن باندې مې د ژور درد څپه بیا خوره شوه.

وروسته بیا له خپل موټروان سره د کور پر لور روان شوم، موټر ته له پورته کېدو سره سم د درانه خوب څپه راباندې راغله، د کور دروازې ته له نږدې کېدو سره سم موټروان ویښ کړم، په ډېرې سټړیا سره کورته د ننه شوم او مور مې وپوښتل: په دې دوه ورځو کې دې بیخي بدلون کړی دی، په تا څه شوي!؟ ځواب مې ورکړ موری! ډېرې پوښتنې مه کوه، په دفتر کې مې کار ډېر و، سټړی او ستومانه یم ویده کېږم، وروسته ویده شوم بیا هم د تېر په څېر د مازیګر پینځه بجې وې چې مور مې ویښ کړم، اوس مې مور ډېره جدي وه، په پوره جدیت سره یې پوښتنه وکړه: نستوه په تا باندې څه شوي دي؟ نه خبرې کوې، نه ډوډۍ خورې او تر ډېره ویده وې، علت یې څه دی؟ ماته د خبرو هېڅ حوصله نه وه را پاتې، ورته ومې ویل: کارونه او بوختیاوې مې ډېرې شوي دي، مور مې وویل: زویه! ته خو په نورو وختونو کې هم بوخت وې، مګر په دې ورځو کې بیخي بل ډول بوخت یې؟!

د مور پوښتنو به داسې بده اغېزه راباندې کوله لکه په سر مې چې څوک په مرمۍ ولي، په غوسه مې ځواب ورکړ: موری! ته څومره ډېرې پوښتنې کوې، پرې مېږده، آخر څه خبره ده، په څه پوهېدل غواړې؟ ایا په ما څه شک لرې؟ مور مې په خورا مانا لرونکې توګه وویل:

ستا په اړه هېڅ ډول شک نه لرم، خو د سترګو له څنډې یې په تجسس (کنجکاوانه) توګه راته کتل، له کوره ووتم موټر چلوونکی مې بهر راته انتظار و، کله چې موټر کې کېښناستم زما د موټر چلوونکي کتلو او حرکاتو بشپړ

بدلون کړی و، بل ډول یې راته کتل، احساس مې کاوه چې د نوموړي کتل هم زما د مور د کتلو په څېر مینه ناک او له زړه سوي ډک دي.

په خپل موټر کې د نورین تلویزین خواته روان وم، فکر مې کاوه چې هډوکي مې چا په ماشین کې زبېښلي او د ګنیو لرګي په څېر یې انرژي ترې ټوله کړې ده، ځان مې یو متحرک مړی احساسوه، د حرکت له پاره مې په وجود کې انرژي نه وه موجوده او دا تیاره هغه مهال خوره شوه چې زما خپرونه د خپل شهرت په وروستیو ځپو کې وه او ورځ تر بلې یې د لیدونکو شمېر زیاتېده.

هغه کسانو چې تېره شپه د نن شپې خپرونې ته د راتګ او ګډون په پار اړیکې نیولې وې، ټول مو رابللي وو د انګړ مینځ د خپرونې له لیدونکو څخه ډک و، وروسته د خپلې شعبې دروازې ته په داسې حالت کې نږدې شوم چې اصلا د حرکت له پاره هېڅ ډول انرژي زما په بدن کې نه وه پاتې، ومې غوښتل چې څرخي خونې ته د رئیس خواته لاړ شم، ګورم چې د خونې دروازه تړلې او رئیس نه شته، حیران پاتې وم چې څه وکړم، په همدې وخت کې د قندآغا بای په نوم یو شخص چې د رئیس ملګری و د څرخي اتاق څنګ ته راغی، هغه راته وویل رئیس خو نه شته، ماویل وضعیت مې ښه نه دی، امکان نه لري چې زه دې خپرونه وچلولی شم.

ده پوښتنه وکړه: څه دربانډې شوي؟

ومې ویل: بای صاحب ټوټې ټوټې یم، حیران پاتې یم چې څه وکړم، رئیس ګورم چې یوه ټوټه « تابلیټ k» راکړي، خو له بده مرغه هغه نه شته او زه مجبور یم چې خپرونې ته لاړ شم، قندآغا بای مسک شو او راته وویل:

هغه څه یاد کړه چې پیدا نه شي، له ماسره چې وې، هېڅکله نه خوارېږي، ګورم چې له خپل جبب څخه یې راوایسته، ویل یې دا ده له ورور سره دې شته، یوه دانه ګولۍ یې راکړه له کوم ځنډ پرته مې سم لاسي خولې ته واچوله، په ډېره بیړه یې راته وویل:

او لېونیه!

ټوله ونه خورې، دا خبره یې هغه وخت راته وکړه، چې ما ګولۍ ترستوني ښکته کړه او معدې ته ټیټه شوه، لس دقیقې لا نه وې پوره شوې، ما داسې حس وکړ لکه تازه چې زېږېدلی او دې نړۍ ته راغلی وم، د یوه مست آس په شان یوې او بلې خواته ګرځېدم فکر مې کاوه چې د نړۍ تر ټولو قوي او توریالی انسان همدا زه یم.

له ځان سره مې ویل: اوس مهال زه کولای شم چې له «لسو» کسانو سره وجنګېږم، په بېړه د سټېډیو خواته لاړم، ګڼ شمېر خلک په خپرونه کې د ګډون په موخه راټول شوي وو. د بابه جانیانو (صوفیانو) ټولو مخالفینو او ملاترو شتون درلود، کله چې سټېډیو ته ورسېدم او خپرونه پیل شوه، جم جوش او هیجان د خوښۍ وزرې غوړولې وې.

بحث هر اړخیز، جالب او د لیدونکو د علاقې وړ و، د بابه جاني ملاترو ویل چې خپرونه ودروئ، خو موږ له کوم بندیز پرته د خپرونې نشراتو ته دوام ورکاوه او خپرونه په ښه زور کې پرمخ روانه وه، ترڅو چې د بابه جانیانو مخالفین او ملاتړي یو له بل سره نیښتې ته نیږدې وو، خو موږ اجازه نه ورکوله.

د خپروني د تلفون شمېره چې تل به له رئیس سره وه او د هغه له لارې به مو له خلکو غوښتل چې په راتلونکو شپو کې په خپرونه کې برخه واخلي. د نن له پاره خپرونه پای ته ورسېده، خوله مې ډېره وچه وه، شين چای او تودې هوا ته مې سخت زړه کېده، له ستېډيو څخه مې په بېړه د رئیس د کوټې په لوري حرکت وکړ، کله چې خونې ته ورسېدم هوا يې ډېره گرمه او په زړه پورې وه.

رئیس د اړيکو په ځوابولو چې په پرلسپې توگه د خپروني شمېرې ته راتلې بوخت و، قند آغا بای چې زه کله ولیدم وویل: ( خدای دې مه کموه زمری يې، «راشه چې د نن شپې خپروني په خاطر یوه ډالۍ درکړم» گورم چې یوه بله تابلېت k يې راکړه، ما د هماغه تابلېت k په نشې سره په اسمانونو کې چکر وهه، ناڅاپي رئیس تلفن غلی کړ، مسکی شو او ويې ويل: ښاغلی نستوه! ستا د خپروني د مراجعينو له لاسه په خدای بيخي لېونی شوی يم، دومره زيات زنگونه راځي چې اړ شوم تلفون غلی کړم. څه دې کړي ښاغلی نستوه؟ ومې ويل هېڅ هم نه دي شوي رئیس صيب، يوازې نن ډېر ستومانه او بې حاله وم، قند آغا بای ته دې خدای خير ورکړي خپروني ته د راتگ پرمهال يې يو تابلېت راکړ، د همدې تابلېت له برکته خپرونه هم ښه منظمه او په ډېره چټکۍ مخته لاړه.

رئیس وویل: ښاغلی نستوه، سبا شپه دې په خپرونه کې استاد ظاهر داعي مېلمه دی، هڅه وکړه چې سبا شپه دې هم بحث مخته يوسې، امکان لري خپرونه يو څه جنجالي وي، خو بيا هم ته ملا ورته وتړه، ماويل سمه ده، خو رئیس صيب اوس کورته ځم، ځکه څو شپې کېږي چې کورته نه يم تللی.

له ټولو سره مې مخه ښه وکړه او ډېر خوښ وم چې په جېب کې مې يو بل تابلېت هم پاتې دی، له څرخي خونې څخه بهر شوم د دفتر انګړته راغلم، موټر چلوونکی مې د دفتر د انګړ مينځ کې انتظار و، راته ويې ويل: مديرصيب کورته ځې؟ هو، ځم.

له نورين څخه مو حرکت وکړ، موټر چلوونکي ته مې وويل چې د حيدر سليم هماغه سندره پرېږده، د موټر ښيښې پورته کړه او بخاری هم روښانه کړه ويې ويل: مدير صيب څه وايې؟ په دې ګرمی کې د موټر بخاری روښانه کړم؟

ورته ومې ويل: هو!

ويې ويل: زه خو له ډېرې ګرمی څخه مرم او ته... ما ورته وويل: ورځه د خپل کور څنګ کې کوز شه او کورته دې لاړ شه، موټر ماته راکړه ،نن شپه خپله ځم، کور يې قلعه وزير کې و، دی مې د کور څنګ ته ښکته کړ او موټر ته زه خپله کښېناستم، د موټر ښيښې مې بندې کړې، بخاری مې روښانه کړه، هوا ډېره ګرمه شوه، د حيدر سليم سندره مې ښه په لوړ غږ پرېښوده او په چټکی سره مې حرکت وکړ؛ زړه مې ونه شو چې کورته لاړ شم، ځکه خو بېرته د شهرنو په خوا راتاو شوم، وروسته قلعه فتح الله، کلوله پشتې، تايمني، خيرخانې ته هم ولاړم بالاخره د کور پر لوري روان شوم؛ په داسې حال کې چې د بدن له «خولو» څخه مې د موټر څوکی لنده شوې وه، د شپې دولس بجې کورته ورسېدم، مورمې دروازه راته خلاصه کړه خوبوړې وه، کله چې له موټر څخه ښکته کېدم ويې ليدم او ويې ويل: په تا څه شوي؟ په ټول بدن دې خولې راروانې دي، موټر دې هم دومره ګرم دی، چې حرارت يې ترما پورې رارسېږي؟

ومې ویل: هېڅ شی نه دي شوي مورې، ومې غوښتل چې مورته مې مالومات ورکړم، ورته ومې ویل: څه چې له حویلۍ څخه خونې ته لاړ شوو، هلته هرڅه درته وایم... کوټې (خونې) ته چې ورسېدو ورته ومې ویل: مورې وزن مې ډېر شوی دی، څو ورځې کېږي چې یو ډول نوې تابلېټ راغلي، چې کله یې سړی وخوري وزن هم کموي او له خوړلو وروسته یې سړی ښې خبرې کولای شي، د دې ترخنګ انسان ډېر غښتلی کوي، دا تابلېټ اویا ډالره قېمت لري، له رئیسانو، لوړ پوړو چارواکو او پیسه داره خلکو پرته یې بل څوک نه شي خوړلی، مور مې په مهربانۍ سره وویل: زویه هغوی قاچاقبران دي، پیسې او ملکیت لري ته یې ولې خورې او خپل ځان خرابوې؟ بیا یې راته وویل: ( زویه دا د نشه یي توکو تابلېټ ښکاري!)

ځواب مې ورکړ: مورې دا مخدره توکي نه دي او روږدیتوب هم نه لري، ډېر دلایل مې ورسره وویل خو مور مې بیا هم قناعت نه کاوه، ومې غوښتل لاړ شم او ویده شم، په داسې حال کې چې خوب نه راتله ځکه دې مستۍ او نشې په وروستي حد کې وم، د یوه کتاب له پاره مې سل ډالره درلودل، هماغه مې را واخیستل او په تمثیلي توګه مې تلفون غوږ ته ونیوه، له ځان سره مې ویل هو، هو! د ستېډیو کلۍ زما سره ده، که ډېره اړتیا نه وي سبا به یې دروړم؟ اوس مهال اړ یم چې له کور څخه بیا بهر شم او لاړ شم، « مور ته مې وویل: مورجانې! د ستېډیو کلۍ له ماسره پاتې شوې ده همدا اوس باید لاړ شم ځکه ډېره ضرور په کار ده، مور مې په شک کې ولوېده، ځکه بهانه مې د مور له پاره د منلو وړ نه وه...

په هر صورت موټر مې چالان کړ او د چاپو ترموز مې راسره راواخیست؛ د موټر بخارۍ مې روښانه کړه او د حیدر سلیم سندره مې هم تر وروستۍ

درجې پورې لوړه کړه؛ ورو ورو مې حرکت وکړ کارت پروان ته له رسېدو سره سم مې د موټر ټانکۍ له تېلو ډکه کړه له جیب څخه مې د ډالرو سلګون راوایست، خپلې پیسې یې ترې واخیستې، نورې یې بېرته راکړې. داسې فکر مې کاوه چې اسمان ته الوځم، موخه او هدف مې نه و معلوم خو بیا هم په ټول ښار کې وګرځېدم، د ملا له آذان وروسته د شپې تاریکۍ خپل تور څادر ورو ورو ټولوه، د رڼا څرک ولګېده، په دهبوریو کې یوه حمام ته لاړم، حمام مې وکړ؛ د سهار اووه بجې شوې د لوږې احساس مې کاوه، نصیب رستورانت ته لاړم، پاچه مې وخوړه، له خپل موټر چلوونکي سره مې اړیکه ونیوله، ورته ومې ویل: له کور څخه دې را ووځه تر هغه زه هم در رسېږم...

کله یې چې کورته نږدې شوم، د موټر چلولو اجازه مې هغه ته ورکړه، موټر چلوونکی مې کښېناست او ویې ویل: «چېرته وې مدیر صیب؟»

ورته ومې ویل: نن شپه مې وغوښتل چې چکر ووهم، موټر چلوونکي مې وویل: مدیرصیب! پوره یوه ورځ موټر درسره و، د موټر حالت دې بېخي وربدل کړی، سم نه ځغلي، او کړپهار پکې ډېر شوی دی؛ ایا ته له خپل مال سره هم همداسې بې احتیاطي کوې؟: ځواب مې ورکړ: په کیسه کې یې مه اوسه، لالا هڅه وکړه ګړندی لاړ شه چې ژر کورته ورسېږم.

له قلعه وزیر څخه د ملا عزت تر ښار ګوټي پورې خوب راباندې راغی، ویده شوی وم، د کور له دروازې سره مې موټر چلوونکي راویښ کړم، کله چې له موټر څخه ښکته شوم، ګورم چې د موټر د مخې خوا یو څراغ او اشاره مات شوي دي؛ زما د خوا دروازه هم چیته شوې وه، همداسې نور زخمونه د موټر په ځینو برخو کې ښکارېدل، موټر چلوونکي مې راته وویل:

(د موټر غم باید وخوړل شي، په یوه شپه کې دې ټوټې ټوټې کړی دی.) ورته ومې ویل: په کیسه کې یې مه اوسه، جېب ته مې لاس کړ، زر افغانۍ راسره پاتې وې، هغه مې ورکړې، ورته ومې ویل: واخله لاړ شه خپل کورته دې، که دې څه په کار و درته وایې خله، بیا پینځه بجې په ما پسې راشه.

ډېر بې حاله او ستومانه وم؛ دروازه مې وټکوله، مور مې دروازه را خلاصه کړه، سلام یې واچوه، نور یې څه ونه ویل... زما له پاره یې هم ارزښت نه درلود چې ځواب را کړي یا یې را نه کړي، اوس ما ته یوازې دا مهمه وه چې ویده شم، لاړم په خپل ځای کې اوږد وغځېدم، پینځه بجې مې مور ویښ کړم، له پاڅېدو سره سم هغه تابلېت k چې قندآغا بای راکړې وه، خولې ته مې واچوله او ورپسې مې دوه دری گیلاسه چای هم وڅښه، لږ رابیدار شوم، جامې مې واغوستې، د چایو ترموز مې هم واخیست غوښتل مې له کوره ووځم نا څاپي مې مور مخې ته ودرېده او ویې ویل: زویه! په دې حالت کې چې زه تا وینم ډېره وېرېږم، الله دې نه کړي داسې نه شي چې کومه ورځ روږدی شې، مور ته مې وویل: ډاډه او ارامه اوسه په ما هېڅ هم نه کېږي.

دفتر ته راغلم، گورم چې د تېرې شپې په پرتله گډونوال زښت زیات راغلي وو، له رئیس سره مې اړیکه ونیوه، ورته ومې ویل: رئیس صیب! د نن شپې خپرونې ته شاوخوا دوه سوه کسان راغلي دي، څه وکړو؟ ویې ویل: « هېڅ ستونزه نه شته ټول لویې ستېډیو ته بوځه چې لس یا پینځلس کسان یې بحث وکړي، په همدې مهال مې چې مراجعین لویې ستېډیو ته بدرگه کول ډېر نشه وم، خپرونه په ژوندۍ بڼه پیل شوه، د کابل پوهنتون دروند ښوونکی او تکړه عالم «استاد عبدالظاهر داعي» هم راغلی و او د بابه

جانیانو په اړه یې ټولیز مالومات وړاندې کړل؛ ویې ویل: « دوی یوه مشرکه، مرتده او فاسده ډله ده» له دې خبرې سره یو ځای د نارې تکبیر غږ پورته شو، ګورم چې «دوه سوه تنه بابه جانیان» چې د خپرونې د مراجعینو د هیئت په ډله کې راغلي وو، په ما او استاد داعي باندې یې حمله وکړه ژوندۍ خپرونه قطع شوه، هغوی په جېبونو کې کانې راوړي وو، خپلو دستمالونو ته یې هم اور واچاوه...

کله یې چې پرما او استاد داعي باندې حجوم را وړ نو په ډېره سختۍ سره مې ځان او استاد داعي له سټېډیو وایسته، ګورم چې د تلویزیون ګاردان یې هم ډبولي او انګړ له بابه جانیانو ډک دی؛ د کنټرول روم سټېډیو یې هم په خپله ولکه کې راوستې وه، پرلپسې یې ښکنځلې کولې، چې د تلویزیون د رئیس ښځه... د نستوه ښځه ... د داعي ښځه... دوی کافران دي.

پر تلویزیون یې دومره تیرې وویشتلې چې روحیه مو په بشپړ ډول له لاسه ورکړې وه، زه، رئیس او استا داعي په دریم پوړ کې و، په دویم پوړ کې مو زموږ خواته د دوی د راتګ د مخنیوي په پار یوه وسلواله دفاعي کرښه جوړه کړه، رئیس له «جنرال فهیم قایم» سره چې هغه وخت د چټک غبرګون قوماندان و په اړیکه کې شو، شېبې وروسته جنرال فهیم قایم ډېر ژر د پېښې ځای ته راورسېده، د پولیسو رنجرو له لیدو سره سم د بابه جانیانو پلویان په تېښته بریالي شول، خو د تلویزیون د ودانۍ او سټېډیو ټولې ښیښې ماتې شوې وې، استاد عبدالظاهر داعي ډېر ډار شوی و، په دې چورت کې و چې څه ډول خپل کورته لاړ شي؟ موږ ډاډ ورکړ چې ان شاءلله هېڅ ستونزه نه شته. خوندي به خپل کورته رسېږي.

حالت تر کنټرول لاندې راغی، جنرال فهیم قایم د تلویزیون انګړ ته راغلی و، له موږ څخه یې وپوښتل « څه خبره ده؟ چاته خو زیان نه دی رسېدلی؟»

ورته ومو ویل چې زموږ څو تنه ساتونکي یې د چاقو په واسطه ټپیان کړي دي، په همدې وخت کې ایوب سالنګی چې د کابل امنیه قوماندان و، له جنرال ظاهر ظاهر سره یو ځای تلویزیون ته را ورسېده. ایوب سالنګی ډېر په غوسه و، ځکه دوه اونۍ وړاندې مو څو انتقادي خپرونې د ده په اړه درلودې، د تلویزیون دهلېز ته چې ورسېده په لوړ غږ یې وویل: څه خبره ده؟ تاسو بیخي له پایځې راایستلی دی، له نورین پرته بل تلویزیون په افغانستان کې نه شته؟ ستاسو له لاسه هېڅ په کرار نه یوو.

رئیس د سالنګي خواته راغی، له لاسه یې ونیوه او خپل دفتر ته یې له ځان سره بوتله، جنرال قایم، د کابل د ملي امنیت رئیس او جنرال ظاهر ظاهر چې د کابل د جنایي جرمونو د څېړنې رئیس و ټول د رئیس دفتر ته لاړل. وروسته له دوه دقیقو څخه یې زه هم ور وغوښتم، ورغلم کښېناستم ګورم چې زما مخامخ څوکۍ کې ایوب سالنګی ناست دی، ناڅاپې په غوسه شو ویې ویل: « اې لچکه، لنډغره!! ته چا په دې تلویزیون کې د ویاند په صفت نیولی یې؟ وېښتان دې د لچکانو په څېر دي، له هېڅچا شرم نه لرې، له یوې خوا خلک ښکنځې، بې پته کوې یې او له بلې خوا د مجاهدینو خبرې کوې، څو مرمۍ دې په کونه خوړلې دي، چې د جهاد خبرې کوې؟ ما ورته وویل: جنرال صیب! سړی باید په کونه مرمۍ وخوري بیا دې جهاد په اړه خبرې وکړي؟ د سالنګي غوسه دوه برابره شوه.

ویې ویل: « لعنت دې وي پردې ډیموکراسۍ چې هر لوچک ویاند شوی دی، چې ته خو په خبریال او ویاند نه وی مشهور او د رسنیو د سانسور خبره نه مطرح کېدلای، قوماندانۍ ته مې بېولې، داسې سزا مې درکوله او داسې مې ډبولې، چې پوه شوی وای چې د خلکو بې پته کول او ښکنځل یانې څه.»

د خپل رئیس خواته مې وکتل، هغه هم له سالنګي څخه ډېر ډار شوی و، زما تمه وه چې ننګه او دفاع به مې وکړي، خو ډېر غلی او وېرېدلی ولاړ و، یوه خبره یې هم ونه کړه؛ مګر جنرال ظاهر ظاهر سالنګي ته وویل: « قوماندان صیب! نستوه جنایي مجرم نه دی، که یې جرم هم کړی وي موږ باید له هغه سره د سیاسي مجرم په چوکاټ کې چلند وکړو.»

ویې ویل: «نه؛ دې څه شي سیاسي مجرم؟ دوه دری سوه کسان یې ټلوېزیون ته را ټول کړي، که کوم څوک وژل شوي وای او یاهم تلویزیون ته اور ورته شوی وای، ایا بیا له رسنیو څخه خوندي پاتې کېدو؟»

غږ یې نور هم پورته شو، ویې ویل: اې اوږدو زلفو واله! د دې څو جنرالانو په مخکې درته وایم: که مې د یوې اونۍ په موده کې بندي نه کړې، زه خپل نوم ګرځوم، تا د هرچا په اړه خپرونې جوړې کړې دي، زما په اړه دې هم خپرونه نیولې وه، ته ما نه پېژنې؟! زه ایوب سالنګی یم.

ورته ومې ویل: سمه ده قوماندان صیب، زه د ویلو له پاره څه نه لرم په همدې شېبه کې جنرال «ظاهرظاهر» خپل لاس زما پر اوږه کېښود او ویې ویل: «ګران نادري! هڅه وکړه چې خپرونې دې لږ تولنیزې کړې، ډېر تېز

او تند پروگرامونه هم تاسو خرابوي او هم پولیسو ته ستونزې رامنځته کوي.»

د همدې جملې په ویلو سره هغوی لاړل او وضعیت خپل لومړني حالت ته راوګرځېده؛ ټیپي ساتونکي او کارکوونکي یې روغتون ته بېولي و، دری څلورو تنو کار کوونکو استاد داعي خپل کورته بېولی و، رئیس بشپړ غلی و، له خپل دفتر څخه و ووت او ماته یې وویل: د دې خپرونې شاه نور پرېږده، دا خلک ډېر ګوابنوونکي دي.

ومې ویل: سمه ده دا خبرې یې چې ماته وکړې، د خپلې ځانګړې خونې په لور روان شو، دی به په دې کوټه کې کله یوازې و او کله به یې هم ملګرې/ ملګري ورسره وو. تلفون مې له جېب څخه راوایست، چې ګورم شل زنګونه راغلي دي، په دې کې ډېر زنګونه د سینما د ملګري محمود رهګذر وو، زنګ مې ورته وواهه، له سلام مخکې یې په لوړ غږ وویل:

نازم ان مشتی که فرق زور مندان بشکند

بشکند دستی که بازوی ضعیفان بشکند

چېرې یې شاه نستوه؟ خپرونه مې دې کتله، یو په یو قطع شوه، تشویش راته پیدا شو، چې کومه پېښه نه وي شوې.

ورته ومې ویل: نه، خیریت دی، هېڅ ستونزه نه شته.

ویې ویل: اې هلکه نستوه، ته خو اوس له یوه ویاند څخه ډېر لوړ په یو رهبر بدل شوی یې، پوهېږې؟... «یو نفر در باندې مئین شوی دی، هغه دې تاجکستان اوسېدونکی دی.»

ويې ويل: دا دي واخله خبرې ورسره وکړه، ما پوښتنه ترې وکړه، څوک دی؟ ناڅاپي د يوې نجلۍ غږ راغی، چې په بشپړه تاجکي لهجه يې خبرې کولې، ويې پوښتل: چېرې يې قوماندان صيب؟ تا خو زه له تاجکستان نه په خپل ځان مئينه کړم، اوس دې مجبوره کړې يم چې افغانستان ته درشم، نه غواړې چې يوځل دې دا مئينه له نږدې ووينې؟ حيران پاتې وم چې څه ووايم، محمود رهگذر تلفون واخيست راته ويې ويل: نادري صيب خپروني هم ستومانه کړی يې، راځه نن شپه يو محفل ونيسو، په يوه بهانه به خپله مئينه هم ووينې، ما پوښتنه ترې وکړه: ښاغلی رهگذر چېرته درشم؟

پته يې راته دويم پروان، زينت فرنيچر راکړه، ما هم وعده ورسره وکړه چې درځم.

کله چې په موټر کې کښيناستم د تابلېټ k ټوله «نشه» را څخه لرې شوې وه، خپل موټر چلوونکي ته مې وويل: ځه چې دويم پروان زينت فرنيچر ته لاړ شوو، ځواب يې راکړ: مدير صيب! مور دې اړيکه نيولې وه، ورته ومې ويل چې خلکو پر نورين تلويزيون حمله کړې او استاد «ستا پلار جان» هم ډېر اندېښمن دی.

خپل تلفون مې راواخيسته مور ته مې زنګ وواهه، ورته ومې ويل چې بابه جانيانو پر تلويزيون حمله کړې وه، لږ پاتې و چې ما او رئيس ووژني؛ خو وژغورل شوو، د هغوی تر تعقيب لاندې يم نن شپه کورته نه شم درتلی، ځم له يوه ملګري سره د هغوی کورته، مور مې راته وويل: سمه ده « په خپل ځان دې ډېر پام کوه»

له مور سره مې د اړیکې تر پرې کېدو وروسته د ملګرو له جملې څخه یوه تن چې د کابل امینه قوماندانۍ کې و، نوم یې زما له یاده وتلی، هغه زنګ راته وواهه او ویې ویل: اې هلکه نستوه په خپل ځان پام کوه، ایوب سالنګي د حوزو ټولو آمرینو ته ویلي دي چې که نستوه لږ سرغړونه وکړي، نو ګیر یې کړئ او دوسیه یې رسمي کړئ! زه پوه شوم چې دا سړی هسې بهانه راته جوړوي او نیسي مې. ورته ومې ویل سمه ده، وروسته مې د ملګري اړیکه پرې کړه، ګورم چې رهګذر بیا اړیکه ونیوه، خو دا ځل دی خپله نه و بلکې هماغه تاجکی نجلۍ وه، هغې راته وویل: کوم ځای ته را رسېدلی یې زما مینې راتګ دې زما له پاره لکه د یوه کال په اندازه دومره ځنډنی شو، ببخي ډېره دې په انتظار پاتې شوم، وېرېږم چې تر راتګ پورې دې بوډۍ نه شم.

ما ورته وویل: اوس در رسېږم، تشویش مه کوه، اړیکه مې پرې کړه زینت فرنیچرته چې نږدې شوم محمود رهګذر ته مې زنګ وواهه ورته ومې ویل: ښاغلی رهګذر! زه له زینت فرنیچر سره ولاړ یم، دلته را رسېدلی یم، خو یوه ستونزه موجوده ده چې ایوب سالنګی ما ځاري، که لږ تېروتنه وکړم بندي کوي مې، مسکی شو ویې ویل: راځه د کورنیو چارو - وزیر زور هم په تا نه رسېږي، هغه خو یو عادي قوماندان دی. بیا یې وپوښتل: چېرته یې؟

ورته ومې ویل: د زینت فرنیچر مخې ته ولاړ یم، ده وویل خی ستا له پاره چې نه وایې وضعیت ښه نه دی موږ در ښکته کېږو او ځو زما د یوه ملګري کورته، ورته ومې ویل: سمه ده زه درته انتظار یم، پینځه دقیقې وروسته محمود رهګذر له دوه نجونو سره له زینت فرنیچر څخه را ښکته شو، زه او موټر چلوونکی هم له موټر څخه راښکته شولو، ګورم چې تاجکی نجلۍ

ډېره لوږه ونه لري، سپینه، چاغه او له ما څخه ډېره قوي وه، په ما یې چې سترګې ولګېدې، کلکه غېږ یې راځینې چاپېره کړه، ټینګ یې ونیولم او ښه زور یې راکړ، راته ویې ویل: زما مینې! ته څنګه یې؟ په لیدو دې ډېره خوښه شوم...

رښتیا به ووایم: زه یې سخت ترتاثیر لاندې راوستلم، ډېر زړه راښکونکي عطر یې وهلي وو، زه یې په غېږ کې داسې کلک کړم، فکر مې کاوه چې په لاسو کې یې اوبه شوم، وروسته یې په مخ ښکل کړم، موټر چلوونکی مې هم په څنګ کې ولاړ و، هغه وپوښتل « دا څوک دی قوماندان صیب؟» ما ورته وویل: زما موټر چلوونکی دی، زه یې پرېښوم، په هغه یې ورمنډه کړه، هغه یې هم په مخ ښکل کړ، رهګذر چې له بلې نجلۍ سره ولاړ و، زموږ ننداره یې کوله، را نږدې شو او ویې ویل: « دا نجلۍ په تاجکستان کې زما له دوستانو څخه ده، تل به یې ستا نوم په خوله و، ما ته به یې تل ویل: کاش دا ځوان مې یوځل له نږدې لیدلی وای، بالاخره مجبوره شوه، ستا د لید په خاطر کابل ته راغله، دا بله مېرمن هم د دوستانو له ډلې ده، موږ خپل موټر کې سپرېږو او ته موږ څاره.»

موټر یې حرکت وکړ، تاجکې نجلۍ هم د رهګذر په موټر کې سپره شوه، کله چې لارې ته ووتلو، موټر چلوونکي مې وویل: «مدیر صیب! دا دې ظالم لور څومره ښکلې ده، ما په کابل کې تراوسه داسې ښکلې نجلۍ نه ده لیدلې» بیا یې وویل: دا دي مدیر صیب! «موږ خبر نه یو او په تا څومره نجونې مئینې دي.»

موږ په همدې خبرو مصروف وو، چې د رهګذر موټر د نوآباد دهکیپک په یوه کوڅه کې د ننه شو او لږ وړاندې له موټر څخه ښکته شوو: « دروازه یې

را خلاصه کړه، محمود رهګذر ته د کور ښځتن وویل: لکه چې ډېر مېلمانه لرې؟.»

کورته ټول د ننه شوو، د کور د ښځتن هېڅ تمه نه وه چې زه به په داسې ناڅاپي توګه د ده کورته ورځم، دا سړی له ځېرې نه ډېر دروند او ښه سړی معلومېده، زما موټر چلوونکي وویل: مدیر صیب که چېرې د شپې دلته پاتې کېږې نو زه هم کورته نه ځم همدلته درسره پاتې کېږم. ومې ویل: ستونزه نه شته پاتې شه، د رهګذر ملګري وویل: په خیر راغلی درنو دوستانو، ښایسته انجونو ته یې په ځانګړي ډول ښه راغلاست وویل، ما ته هم، نادري ښه راغلاست زموږ غریبانه کورته ښه راغلاست، ما هم مننه ترې وکړه وروسته یې وویل: څه مو خوښېږي؟ په پخلنځي کې قورمه لرم او یو بوتل ودکا هم شته، ورېندار مو له اولادونو سره د پلار کره تللې ده.

ما ورته وویل: د دومره ښو خوړو موجودیت او پوښتنه!؟

کله یې چې دستر خوان اوار کړ، تاجکۍ نجلۍ له خپل ځایه پورته شوه ترځنګ مې کښېناسته، مخ مې یې را ښکل کړ ویې ویل: « زه څومره خوشبخته انسان یم، چې نن شپه د خپل عشق ترځنګ ناسته یم.»

محمود رهګذر او بله تاجکۍ نجلۍ سره مسک شول، د رهګذر ملګري وویل: دغه ده نادري صیب په ټول ژوند کې یوې نجلۍ هم زموږ خواته ونه کتل، مګر ته وګوره چې ستا مئینانې آن له تاجکستان څخه ستا لیدو ته راځي! دوه‌ی کېښودل شوه د ودکا بوتل په ښځلو مو پیل وکړ، نوي نشه شوي وو چې ښځاک (شراب) خلاص شول.

د رهگذر ملگري وویل: تاسو په کور کې اوسئ، زه د ښاغلي نادري له موټر چلوونکي سره په څښاک (شرابو) پسې ځم « زه پاتې شوم، له رهگذر او دوه تاجکې نجونو څخه مې وپوښتل، رهگذره؟ له تاجکې نجونو سره د ملگرتیا څه ډول اړیکه لرې چې درته راځي؟

ده د نجلۍ خواته وکتل، دواړه مسکي شول او وروسته یې وویل: له اړیکو اړیکې جوړېږي ښاغلی نادري، د دې خبرو په کیسه کې مه کېږه وگوره مئینه دې څه درته وایي!؟

تاجکې نجلۍ په خبرو پیل وکړ ویې ویل: « څېره مې دې ډېره خوښېږي، اندام دې هم ښه دی، خو یوه ستونزه لرې؛ خېټه دې لږ غټ ده، خیر دی د دې درملنه هم ماسره شته دا ناوړه شراب هم سړی بدرنگ کوي، نو ډېر شراب مه څښه.»

ومې ویل سمه ده نه یې څښم، خو په دې وختونو کې تابلېت K خورم، بیا مسکۍ شوه ویې ویل: موږ ډېر ښه تابلېت K لرو، چې په کارولو سره یې هم لږ ډنگرېږې او هم دې څېره(جلد) روښانه کېږي او همدارنگه زموږ دا تابلېت K هېڅ ډول روږدیتوب (اعتیاد) نه لري. چې یو ځل یې ووهې او خوند یې وگورې بیا به تل له همدې څخه کار اخلې.

پوښتنه مې ترې وکړه: څه ډول دي؟ گورم چې له خپل دستکول څخه یې د شیشې یو پیپ راوایسته، په ژوند کې مې لومړی ځل و چې د شیشې پیپ مې ولیده، پوښتنه مې ترې وکړه: دا څه شی دي؟ ویې ویل: هغه تابلېت چې موږ یې کاروو اړتیا نه شته چې په گرم ځای کې کښېنې او چای ورسره وڅښې، وروسته یې له خپل دستکول څخه یو کاغذ راوایست،

کاغذ یې پرانیست، ګورم کوچنۍ تېرې چې له نبات سره یې ورتوالی درلود، وروسته یې د پیپ په مینځ کې واچولې او تر پیپ لاندې یې لایټر روښانه کړ، شېبه وروسته یې له خوله څخه ډېر غلیظ دود بهر شو ... پیپ یې محمود رهګذر ته ورکړ او ویې ویل: وا دې پرې بچیه! قربان دې شم په دې ډول سلطنتي تابلېټ K، رهګذر هم څو دوده کش کړه، د بلې تاجکۍ نجلۍ نوبت راغی هغې هم وواهه او ویې ویل: څومره خوند لري، ورک دې شي ناوړه شراب او نورې نشې، چې دا وکاروې پوهېږې چې خوند څه دی!؟

پیپ او لایټر یې ماته راکړل ومې ویل: زه یې نه څکوم، زه یې وینم دا دود لري او مخدره توکي دي، دری واړه مسکي شول، رهګذر وویل: نادري صیب! ته ډېر پوه یې خو بیا هم ډېر ساده انسان یې، دا کله دود لري؟ هغه ټول بخار دی دود له کومه شو!؟ او بیا په افغانستان کې کله دا ډول نشه شته، که وي هم عادي خلکو ته بیا کله رسېږي او که چېرې ممکنه هم وي نو بیا کله کولای شي چې دا ډول پیپ د ښاپېرۍ له بچیانو سره وڅکوي. نا څاپي تاجکۍ نجلۍ وویل: زما نوم شعله دی، ما ټول تاجکستان کې اور(شعله) رامینځته کړې ده، کوم خلک چې زما مینوال دي او غواړي چې له ماسره لیدنه وکړي، زه یې د لیدلو له پاره وخت نه لرم، خو ستا له پاره له تاجکستان څخه راغلې یم او بیا ته نه غواړې چې د خپلې معشوقې له لاسه یو دوه دوده ووهې. موږ هم خوشحاله کړه، زه له تا سره ستا د ځوانمردۍ له امله مینه لرم، که یو دود ووهې څه کېږي!؟ فرض کړئ دا په اصل کې یو درمل دی، د هغه چا له پاره چې له سلګونه مېتره

لرې واټن او بهرني هېواد څخه ستا د مينې په خاطر راغلې، بيا هم نه غوارې چې خبره يې ومنې او په خوښه يې يو يا دوه دوده کش کړې!؟

ما ورته وويل: مشعل جانې اوس دې چې زما د ځوانمردۍ په اړه وويل، را کړه چې ويې څکوم، ويې ويل: نه، زه يې درته نيسم ته يې يوازې وڅکوه نوکره دې ژوندۍ ده.

د پيپ سر يې زما په خوله کې دننه کړ، وروسته يې تر پيپ لاندې د اور لمبه ونيوله او لومړۍ دود مې کش کړ، ومې ويل: بس دی. هغې وويل: نه، حداقل لس يا يوولس دوده وڅکوه، ځو پوه شې چې څه شی دې څکولي، کله به يې چې پيپ راته نيوه ځان به يې ډېر ماته نږدې کاوه، سينې به يې زما پر مټ ونيښلولې او دوامداره حرکتونه به يې ترسره کول، درې دوده مې چې کش کړل، د شرابو نشه يې زما له سره وايسته، لکه څرنګه چې دې مخکې راته وويل: چې دا شی ډېر خوند لري او تر تابلېټ k ښه شی دي، رښتيا هم همداسې وه، خوند يې ځو برابره ترې ډېر و، دا وخت مې فکر او حوس راژوندی شو او له نجلۍ سره ډېر صميمي شوم...

محمود رهګذر وويل: «دادي نادري صيب! مور دې هېر کړو، دې يارې دې بيخي ته له مور خپل کړې، ټولې خبرې له هغې سره کوې او مور هېڅ شوو.»

تاجکۍ نجلۍ وويل: غلی شه محمود احمقه، نه مې پرېږدې چې له خپل لومړني عشق سره ځو کلمې خبرې وکړم؟

بيا يې پيپ زما په خوله کې را د ننه کړ او ترپيپ لاندې يې اور ونيوه، هغه لمبه يې چې تر لايټر لاندې نيوله، زما له ژوند يې لمبه جوړه وله، همدا وخت و چې د محمود رهګذر ملګرى زما له موټر چلوونکي سره را

ورسېده کله چې کوټې ته را د ننه شو، ويې ويل: او خلکو څومره دود دی، دا دود څو د سيګرېټ د دود په شان نه دی نو دا د څه دود دی؟

رهګذر وويل: د تابلېت k دود دی ملګري يې وويل چې تابلېت k څو دود نه لري.

رهګذر وويل: لري يې. د مشعله جانې تابلېت k دود لري.

ويې ويل: څه ډول دی؟ کله يې چې د شيشې پيپ وليده په لوړغږ يې وويل: د خدای له پاره! سمدستي يې وپوښتل نادري ته خوبه مو نه وي ورکړي؟

ورته ويې ويل: چې مشعله جانې ورته ورکړ.

د رهګذر ملګری په غوسه شو، ويې ويل: نادري ولې دې وڅکول؟

ورته ومې ويل: ولې؟ ستونزه نه لري، ما د خپل رئيس ترمخ هم « تابلېت k » خوړل، راته ويې ويل: وه وروره دا تابلېت k نه دي، دا شيشه ده چې انسان تبا کوي او له منځه يې وړي.

رهګذر وويل: نستوه وروره دا سړی نشه دی او لېونی شوی دی؛ دا سړی له هېڅ ډول ستونزې سره نه مخامخ کوي.

ورته ويې ويل: رهګذره څنګه چاته ستونزه نه پېښوي، رهګذر وويل: وه وروره يوه شپه دې کورته راغلي يوو، نصيحت دې شروع کړی دی؟

ملګري يې وويل: زما يوازې يو ويل و درته بس، وروسته يې زما خواته په مانا لرونکي ډول وکتل او ويې ويل: نادري صيب! جنازه دې په کوم جومات کې ادأ کړو؟ د کڅوړې له مينځ څخه يې دوه بوتله اپسلوټ را وايستل، چکه يې هم راوړې وه، د ټولو په ګيلاسونو کې يې څښاک (شراب) واچول، رهګذر وويل: موږ ته څښاک (شراب) مه اچوه موږ معيشت او پاچاهي کوو، په سړه سينه يې وويل: نوشيجان مو شه!

مخ یې وګرځاوه او زما موټر چلوونکي ته یې ووېل: وروره نه یې څښې؟
موټر چلوونکي مې ووېل: نه!
خپله یې تر هغه وڅښل څو چې نشه شو، تاجکۍ نجلۍ هم ماته په پرلپسې ډول څښاک (شراب) اچول، د رهګذر ملګري د یوه ګیلاس په څښلو سره ورته ووېل: « ډېره بدبخته او فاحشه ښځه یې په دې هېواد کې مو یو تکړه ویاند درلوده، هغه دې هم له موږ څخه واخیست.»
رهګذر مسکی شو او ویې ویل: نادري صیب! کومه خبره نه ده، نشه شوی دی، د شرق او غرب په کیسه کې هم مه اوسه، ته دې خپله نشه وکړه، ځکه چې د نن شپې نشه به دې بیا په ټول ژوند کې هم پیدا نه کړې.
تاجکۍ نجلۍ د هر پیپ په څکولو سره ورو، ورو زما خواته ځان نږدې کاوه، د رهګذر ملګري راته ووېل: پاځه نستوه! چې یوه شخصي خبره درسره لرم.
له خپل ځایه پاځېدم، ترلاس یې ونیولم او بلې کوټې ته یې بوتلم، دلته یې زما په اوږه لاس راکېښود او راته ویې ویل: دغه محمود د تاجکو له دې طبقې سره ډېره قوي اړیکه لري، کیسه یې بیا درته کوم، نن شپه په ډېره اسانۍ سره دربانډې بریالي شول، شیشه یې درته درکړه، پام دې وي! که تاجکۍ نجلۍ هر ډول سکس حرکت ترسره کړ، پروا یې ونه کړې، ځان لرې ترې ساته، ځکه که په ایډز ګرفتار شې بیا به څه کوې؟
بېرته خپلې کوټې ته راغلو، نجلۍ راته ووېل: زما عشقه! له ما څخه مه لېرې کېږه او د نشه یي سړي په خبرو باور مه کوه.
بیایې پیپ را واخیست او ما هم بیا پیپ په خوله کې ونیوه او په خوند مې خپله شیشه څکوله.

د شپې شاوخوا دوه نیمې بجې وې، زما په موټر چلوونکي خوب راخور شو، رهگذر ته زنگ راغی، اوکې یې کړ او ویې ویل: هو قوماندان صیب، له موږ سره دی... په سترگو قوماندان صیب...
له خپل ځایه پورته شو، ویې ویل: نادري صیب یو بېړنی کار را ته پیدا شو، زه له نجونو سره ځم او ډېر ژر بېرته راگرځم.
ومې پوښتل: چېرته؟
ویې ویل: «اړین کار دی، بېرته چې راغلم، بیا درته وایم»
تاجکۍ نجلۍ وویل: ستا صدقه شم! ژر راځو او بېگاه دې لخیره ښه چاپي کوم، له ځایه پورته شول او لاړل، د رهگذر ملگرې ویده و او زه هم یوازې شوم؛ غاښونه مې یو له بل سره ډېر ژور نیښتي وو، نه پوهېږم چې د څه په اړه مې فکر کاوه، د شیشې نه موجودیت راته زړه بوږنوونکي تمام شو، دقیقې مې شمېرلې چې کله بېرته راگرځي، دې سهار رڼې څپې راخورې شوې خو د دوی حال معلوم نه شو... بالاخره د سهار اته بجې شوې خو بیا یې هم پته ونه لگېده زما موټر چلوونکی او د رهگذر ملگری له خوب څخه را پاڅېدل، ملگري یې پوښتنه وکړه: ویده نه شوې؟
هو، نه پوهېږم ولې هېڅ خوب رانغی، ویې ویل: چې د ناوړه شیشې همدا خاصیت دی، چې خوب له منځه وړي، نادري صیب ښه کار دې ونه کړ! شیشه دې وڅکوله که خدای مکړه روږدی شې ته او کورنۍ دې تباه کېږي.

د سهار نهه بجې وې، چې د رهگذر هېڅ مالومات ونه شول، ما د رهگذر له ملگري سره په څښاک (شراب) څښلو پیل وکړ، څه کم یو بوتل مو وڅښل، چې رهگذر او ملگرې یې راغلل، هماغه تاجکۍ نجلۍ زما خواته راغله ښکل یې کړم او ښښنه یې وغوښته، د شیشې پیپ یې بیا راوایسته او

دا ځل يې بيا خو قوي دودونه راباندې کش کړل، د شرابو او شيشې ګډې نشې زه بېخي د لېونتوب ترحده ورسولم.

د رهګذر له کور څخه ووتلو، موټر چلوونکي مې ډېر جدي کنټرولولم، په ډېرې سختۍ سره مې کلۍ ترې واخيسته، خو خپله موټر ته کښېنم، اجازه يې نه راکوله خو له ډېر ټينګار وروسته يې موټر چلولو ته پرېښودم، په ډېر سرعت سره د کور پر لور روان شوو. د پوليسو له پينځمې امنيتي حوزې سره امنيتي چک پاينټ لاس راکړ، ډېر ژر ودرېدم د پينځمې امنيتي حوزې آمر چې هغه وخت د مشتاق په نامه و، هغه هم دلته ولاړ و، ما له ټولو سرتېرو سره روغبړ وکړ، د نشې په حالت کې وم، د هغوی لاسونه مې ښکلول، په لوړ غږ مې وويل: ستاسو ريښتينو زامنو لاسونه د ښکلولو دي او د آمر لاسونه مو چې يو خاين دی، بايد پرې شي.

د حوزې آمر وويل: ولې نه!؟ په خدمت کې يم... ملګرو ته يې امر وکړ چې ما ونيسي او په بند خونه کې مې واچوي، ملګري يې په ما را ټول شول، کش يې کړم او په يوه تياره خونه کې يې واچولم، دلته دومره ژور خوب راغلی و چې څو ساعته ويده وم، په ناڅاپي توګه يوه صيب منصب له خوبه پاڅولم، څو ځلې يې ټکان راکړ، څو په خود راشم... ويې ويل: وروره! د موجودۍ په وخت کې سړی بايد ويښ وي.

نشه مې نه وه لرې شوې: ومې ويل: موجودي يانې څه؟

ويې ويل: « د څارخونې موجودي! دا څارخونه ده او د بندي خانې د قوانينو په اړه دې له ملګرو پوښتنه وکړه.»

له موجودۍ وروسته دری کسان زما خواته راغلل، ويې ويل: غم مکوه نادري صيب، موږ درسره يوو، په کيسه کې يې مه اوسه په نارينه دا ورځې راځي، د خبرو په جريان کې له دوی څخه يوه ډېر ورو او په احتياط سره

له خپل جېب څخه د شیشې پیپ راوایسته او څو دوده یې وڅکول، ما هم هیله ترې وکړه چې یو دود راکړي. ویې ویل: مهرباني ستونزه نه شته.

څو دوده شیشه مې چې وڅکوله، لږ په حال راغلم خو ښه خبره دا وه، چې ټولو زه پېژندلم، له یوه صیب منصب څخه مې وغوښتل چې ما د څارخونې قوماندان ته ورولي.

ورغلم او ومې پوښتل: قوماندان صیب! زه په کوم جرم دلته بندي شوی یم؟

ویې ویل: د څښاک (الکولو) په څښلو او د عامه نظم د اخلال په تور.

ومې ویل: څومره وخت دلته پاتې کېږم؟

ویې ویل: « دلته نه پاتې کېږې بلکې له دې ځایه توقیف خونې ته بېول کېږې او له هغه ځای څخه د ثرخي پله زندان ته ورل کېږې، چې پایله یې شپږ میاشتې زندان تېرول دي نور کومه ستونزه نه شته، دا خو ژر تېرېږي.» «زه حیران پاتې شوم، بېرته خپلې کوټې ته راغلم، هغه دری توقیف شوي کسان لا هم همدلته پراته وو، د دوی له جملې هغه کس چې ما ته یې څو دوده شیشه راکړه، بیا یې پیپ راوایسته.

ده خپل پیپ له سپینو لوله یي ګروپونو څخه جوړ کړی و، ویې ویل: نادري صیب! ته یې څکوې؟

ورته ومې ویل: هو؛ ولې نه!

شیشه مې خو دوده کش کړه وروسته مې ورته وویل: وروره! په دې زندان کې پرلپسې څکول ستونزمن دي، ته دومره پیسې له کومه کوې؟ ویې ویل: له سره دې څار، له تا څخه زیاتې نه دي، په داسې حال کې چې په څارخونه کې دوه دری دوده شیشې پینځه سوه افغانۍ قېمت درلود.

دری ورځې وروسته مې موټر چلوونکی پوښتنې ته راغی: ويې ويل: هماغه شپه مو چې موټر له حوزې څخه وایسته او په لومړی ورځ يې چې ته نیولی وې ځوکسانو ایوب سالنګي ته زنګ وواهه خو خلاص يې نه کړې. اوس يو څو ورځې همدلته اوسه، څو ځينې خندونه له منځه لاړ شي.

رئیس ته مې زنګ وکړ، ويې ويل: « دوسیه دې رسمي کړې ده، هماغه شپه دې ونه لیدل چې ایوب سالنګي څه وویل!؟ خو وويل: که مې په یوه اونۍ کې بندي نه کړې، نوم مې ګرځوم.» سربېره پردې چې پوهېدې وضعیت خراب دی، ولې خپل کورته نه تللې!؟ اوس مالومه نه ده چې څه کېږي؟ که دې چېرې دوسیه څارنوالۍ ته لاړه شي، لوی څارنوال هم په غوسه دی، ځکه د هغه په اړه دې هم ډېرې خپرونې خپرې کړې دي. مالومه نه ده چې څه بلا به درباندې راولي!؟

د رئیس له اړیکې وروسته مې روحیه ډېره ضعیفه شوه، حیران پاتې وم چې څه وکړم!؟ یوې خنډې ته لاړم، په زنګونو باندې مې سر کېښود او ډېر سخت مو وژړل...

بیا هماغه شیشې واله ملګری را پیدا شو، ويې ویل: خپه کېږه مه هرڅه به سم شي، د دنیا هر کار کېږي، که شیشه وهې راځه چې لاړشو، په تشناب کې ځوک نه شته، هلته يې په خلاص مټ کشکولای شوو، ما ورته وويل: سمه ده؛ لاړو په تشناب کې مو په ګډه شیشه وځکوله، شپې او ورځې همداسې تېرېدې، یوه اونۍ تېره شوه، چې بیا مې موټر چلوونکی لیدو ته راغی او راته ويې ويل: « رئیس صیب کوم کار ونه شوی کولای، دوسیه دې لویې څارنوالۍ ته تللې ده، اوس یوازې ستا پلار جان ستا د خلاصون هڅې کوي، څو کسان يې په موضوع پوه کړي او سپارښتنه يې

ورته کړې څو لوی څارنوال ستا د خلاصون امر وکړي، خو داسې معلومېږي چې د هغوی خبره یې هم نه ده منلې نو صبر وکړه هرڅه به وشي.»

څو ورځې وروسته مې موټړ چلوونکی بیا راغی او ویې ویل: پلار دې ستا د خوشې کولو په پار د حامد کرزي دفتر رئیس کریم خرم ته ورغلی دی، شاید یوه نتیجه ورکړي.

د موټر چلوونکي له تګ وروسته د څارخونې په لاسپیکر کې غږ وشو چې خپلو نومونه ته متوجې اوسئ! د چا چې نومونه اخیستل کېږي هغوی توقیف خونې ته لېږدول کېږي. لومړی نوم نستوه، د پلار نوم یې نصرالله، چمتو اوسه، وروسته یې د ډېرشو کسانو په تعداد توقیف خونې ته ولېږدول، زما دې واده لا ډېر وخت نه کېده، په زړه کې مې وویل: که چېرې زه په زندان کې پاتې شم څه به وشي!؟

توقیف خونې ته چې ورسېدو، د شیشې خمار راباندې راغلی و، حیران پاتې وم څه وکړم، له هلکانو څخه یو زما خواته راغی او ویې ویل: ډېرکسان زما مینوال دي او په توقیف خونه کې هر کار زما له پاره ترسره کولای شي.

له هغه مې وپوښتل، ایا شیشه پیدا کولای شې!؟

زه یې له میرویس خال دار سره معرفي کړم، هغه زما په معرفت خوښ شو او یوه اونۍ یې ماته په توقیف کې شیشه راکوله.

یوه ورځ مو یو ګرام شیشه په ګډه ووهله، ډېر نشه شوی وم، چې په همدې حالت کې د توقیف خونې له لوډ سپیکر څخه غږ پورته شو: «نستوه ولد نصرالله جامې دې ټولې کړه ته ازاد یې.» هیڅ باور مې نه کېده، بهر ته

ووتلم، گورم چې پلار مې د باندې زما له پاره انتظار دی، کله مې چې په پلار سترګې ولګېدې، سخت تر تاثير لاندې راغلم او دې ډېر شرم احساس مې کاوه، يوه خبره دا وه چې زه ولې بندي شوی يم او بل دا چې له بده مرغه اوس روږدی شوی وم. پلارمې راته وويل: بچو! څه چې څو کورته.

کله چې کورته ورسېدو، ويې ويل: سبا لوی څارنوال اسحاق الکو خپل دفترته غوښتی يې، دوه بجې به ورشوو.

ومې ويل: سمه ده، لاړم او ويده شوم...

سبا چې له خوب څخه پاڅېدم ټول وجود مې درد کاوه له موټر چلوونکي سره مې لاړم د لوی څارنوال ښاغلي الکو دفتر ته، نوموړي له ماسره ډېر ښه او په درنښت چلند وکړ، ده وويل: ډېرو کسانو ماته زنګ وواهه چې ازاد دې کړم، بالاخره مې د کريم خرم په غوښتنه ازاد کړې، دلته مې د دې له پاره راوغوښتې څو خبرې درسره وکړم، په ياد دې دي چې د کريم خرم پرضد دې څومره خپرونې نيولې وې!؟ په ياد دې دي چې د يوې ځانګړې ډلې له پاره دې په خلکو باندې حمله کوله، خو هماغه ډلې ونه شوای ژغورلی بلکې هغه څوک دې چې تخريبول هغوی وژغورلې!؟

د ټولنيزو ستونزو له امله زه لا تراوسه نه يم توانېدلی چې خرم صيب وګورم او يوه مننه ترې وکړم. وروسته د تلويزيون خواته لاړم، دلته بل څه پېښ شوي وو، همکارانو مې کيسه راته وکړه، چې ستا د نيولو په خاطر له لويې څارنوالۍ څخه پوليس راغلي وو، څو تا ونيسي او بندي دې کړي، خو له نېکه مرغه عام ولس د دوی مخنيوی وکړ او په خپله مخه لاړل، خو دا چې ايوب سالنګي زه په فرېب او دوکو بندي کړم هېڅا هم څه ونه شوی کولای، د ايوب سالنګي پلان داسې و چې هېڅوک مانع نه شوی واقع کېدلای نو زما د بندي کولو مخه به يې څنګه ډپ کړې وای؟

ناڅاپي مې ترخنګ یو موټر ودرېده، څو کسان له موټر څخه راښکته شول، کله مې چې وکتل محمود رهګذر او د هغه دریو ملګرو ډېر تود روغبړ راسره وکړ، محمود رهګذر راته وویل:«چېرې یې هې ناخراباته» له هغې شپې چې لاړې ترننه دې بیا پته ونه لګېده؟ ما ورته وویل: ایا ته خبر نه شوې چې زه بندي شوم او دا څو شپې په زندان کې وم!؟

ویې ویل: زه خبرشوم خو له بده مرغه په تاجکستان کې وم او مهمه دا چې شعلې ډېر یادولې.

په خوب کې مې ورته وویل: الله دې دا هلاکه کړي، زه خو یې په شیشه روږدی کړم، رهګذر مسکی شو، ویې ویل: وه وروره په شیشه کې سلطنتي نشه ده، څه وایې ته!؟ د خدای له پاره پرته له دې چې څه ورته ووایم، زما د موټر په مخ سېټ کې کښېناست او وروسته یې خپلو ملګرو ته وویل: تاسو په موټر کې لاړ شئ زه درځم. زه هم په موټر کې کښېناستم، ده پوښتنه راڅخه وکړه: شاه نستوه څه خبرې دي؟

ورته ومې ویل: هېڅ، له جېب څخه یې پیپ راوایسته ویې ویل: واخله چې اصلي کولمبیایي دي، اورېدل مې، حس کول مې او فکر مې کاوه چې له ټول بدن څخه مې شیشه! شیشه! شیشه! چیغې پورته کېږي.

له رهګذر سره مې په موټر کې ډېره شیشه وڅکوله او وروسته کورته لاړم؛ نور مې کار کولو ته زړه نه کېده، له کار کولو څخه ستړی شوی وم، څکه په میاشتو، میاشتو یې د کار کوونکو معاش نه ورکاوه، د رئیس او د ده د کار کوونکو ترمنځ د شک فضا بېخي پراخه شوې وه، له رهګذر سره زما لیده کاته ورځ تربلې زیاتېدل...

یو سهار له کور څخه د وتلو پر وخت زما پلار زه خپلې کوټې وروبللم، ویې ویل: مور او مېرمن دې وايي: موږ فکر کوو چې ممکن ته په نشه یي توکو باندې روږدی شوی یې، خو زه یې نه منم، ځکه پوهېږم چې ته هوښیار یې، خو که واقعًا په دې ناورغۍ اخته شوی وې ووایه چې په یوه روغتون کې دې بستر کړو.

ما وویل: نه پلاره! دا څه ډول خبرې دي چې ته یې زما په اړه کوې!؟ زه بشپړ په خپل حال یم او له داسې شیانو کرکه لرم.

بې معاشۍ او د پیسو نه موجودیت زما په ژوند کې ورځ تربلې یو ډول ګډوډي رامنځته کوله، ما خپل موټر چلوونکي ته هم معاش ورکاوه، په همدې نه شته امکاناتو کې ما کوښښ کاوه چې معاش یې پر خپل وخت ورکړم. موټر چلوونکی مې پوه شوی و، چې زه د هلاک کېدو په درشل کې یم، وروسته له نهه میاشتو زما د نیمې میاشتې معاش چې پینځه سوه ډالر کېده رئیس راکړ، هماغه شپه مې چې دوه سوه ډالرمعاش ورکړ اختر ته دوه شپې پاتې وې ویې ویل: موټر واخله زه لږ سودا کورته وړم، سبا یې زنګ راته وواهه، زه دې کور تر دروازې درځم، غواړم نور موټر درته تسلیم کړم.

ومې ویل: سمه ده، خو له همدې خبرې وروسته یې درک ونه لګېده، په کومه شمېره به چې مخکې ما اړیکې ورسره پالل، هغه یې مړه کړه، همداسې ترننه پورې له ما څخه بې درکه دی. له دې مسئلې وروسته زه له خپل موټر سره په نورین تلویزیون کې یوازې پاتې شوم؛ اوس مې نو د ژوند هره شېبه له وحشت او سرګردانۍ ډکه وه، ښاغلي رئیس زما دې خپروني له برکته په تالقانو - تخار ښار کې د دوه مېلیونه ډالرو د سړک جوړولو پروژه پیل کړې وه، د دې پیسو ډېره برخه ترلاسه کړې وه او په

پنجشېر ولایت کې یې یوه یوولس پوړیزه ودانۍ چې سل خونې یې درلودې جوړه کړې وه، دی به همېشه په همدغه ځای کې بوخت و، ماته ډېره جالبه دا وه چې رئیس ناځاپي ولې داسې له حده لوړې خبرې کوي!؟ ساعتونه ساعتونه یې یو ډول کیسې کولې، کار کوونکو ته به یې دومره خبرې کولې او ډاډ به یې ورکاوه، چې ټول ترې ستومانه شوي وو کار کوونکي بې معاشه مګر پخپله په پنجشېر ولایت کې د خپلې ودانۍ د جوړولو په خاطر یې ډېرې پیسې مصرفولې، ډېری وخت به په کابل کې نه و.

زما به هم چې هر وخت زړه وه تلویزیون ته به تلم، محمود رهګذر زه یوه ورځ دویم پروان د پهلوان فهیم سید خېلي هوټل ته بوتلم، د کاکا عزیز سید خېلي په نوم له یوه کس سره یې معرفي کړم، وروسته له هغه به هره ورځ د کاکا عزیز سید خېلي هوټل ته تلم او هلته به مې شیشه څکوله، په ډېره لوړه کچه مصرف به مو کاوه تردې اندازې په دې مرګونې ماده اخته شوی وم، چې خلاصون مې هسې یوه معما وه، رئیس به چې کله کابل ته راته، ورسره لیدل مو، زه هم پوهېدم چې رئیس شیشه وهل پیل کړي دي او هغه هم زما په اړه پوهېده، دا چې هغه چا دې کار ته هڅولی و نه پوهېږم، تردې حده مفلس (بې پیسو) شوی و چې د کار کوونکو د غرمې، شپې او سهار له پاره یې له نانوایۍ څخه د وچې ډوډۍ د اخیستلو پیسې نه درلودې.

هغه مهال ما خپل پام په مجازي نړۍ فېسبوک کې نشراتو ته کاوه، زما د فېسبوک پاڼه زما د همکارانو له ډلې د حشمت غني په نوم کس لخوا جوړه شوې وه، په هغه پاڼه کې ټولو فعالیت کاوه او رئیس یو ډول ضد اخیسته؛ ما په فېسبوک کې د رزمنده ګان په نوم یوه پاڼه جوړه کړې وه، د

(کابل کوزین) هوټل په اړه مې یوه ډېره زړه راښکونکې خپرونه جوړه کړې وه، چې زما د پاڼې نشراتي ځواک یې لوړ کړی و، په همدې شپو ورځو کې مې رئیس ته وویل: رئیس صیب! تر کومه وخته له تاسره بې معاشه پاتې شم!؟ رئیس ته به دې چې کله د معاش په اړه یادونه وکړه نو د سبا په اړه به یې ګرمې او نرمې وعدې درکولې، چې سبا ستاسو حق درکوم، خو بیا به هم سبا د معاش په اړه هېڅ خبر نه و، په دغه پرلپسې ژمنو باندې ورځې تېرېدې، هغه ورځ مې له یاده نه وځي په کومه ورځ مې چې د تېلو د نه موجودیت له امله موټر په تلویزیون کې پاتې شو، پنځوس افغانۍ نه پیدا کېدې چې یو لېتر تېل واخلم او موټر له دفتر څخه کورته بوځم، اخر له دریو ورځو ځنډ وروسته رئیس پینځه سوه افغانۍ راکړې، څو پینځه لېتره تېلورباندې وپېرم او موټر ته یې واچوم، ومې غوښتل چې د کابل کوزین خپرونې د دوام له پاره په خپله پاڼه په ژوندۍ بڼه خبرې وکړم، یوه شپه په همدې خپرونه باندې بوخت وم چې زنګ راته راغی، ویې ویل: ودې پېژندلم؟

ځواب مې ورکړ: نه! ویې ویل خال دار میرویس یم، توقیف خانه دې په یاد ده چې هره ورځ به دې له موږ سره شیشه څکوله.

ومې ویل: نه؛ میرویس جانه! خوښ شوم چې له بند خونې خلاص شوی یې، چېرې یاست؟

ویې ویل: «شهرنو» ومې ویل: زه هم همدلته یم، د ادرس او نښو ورکولو وروسته مو یو بل وموندل، په موټر کې له کښېناستو سره سم یې پیپ راوایسته او په شیشه څکولو یې پیل وکړ، هماغه شپه مو تردری بجو په ګډه شیشه ووهله، وروسته یې زه له ځان سره دارلمان ته بوتلم، راته ویې ویل: دا زما د ورونو کور دی.

کله چې کورته لاړو، له ما سره یې ډېر ښه چلند وکړ، ویې ویل: زما نوم هاشم دی او انجینیر یم.

تریاک یې له جیب څخه راوایستل، په کور کې یې د شیشې څو پیپونه موجود وو، کیسې مو وکړې، ما په خپل موبایل کې څو ویډیوګانې جوړې کړې او د هغه له غږ څخه مې کار واخیسته؛ یوه کمره مو هم درلوده سهار وختي د دارلامان ماڼۍ په لور روان شوو، د هاشم څو انځورونه ما واخیستل او هاشم هم زما څو قطعې انځورونه واخیستل؛ میرویس خال دار په موټر کې ویده و، په همدې وخت کې هاشم په یوه کاغذ کې شاوخوا یو ګرام شیشه راکړه، چې زما سترګې یې روښانه کړې، حیران شوم، ورته و مې ویل: دا ټوله!؟

ویې ویل: هو زما لخوا تاته ډالۍ ده.

د دې مقدار شیشې په ترلاسه کولو مې فکر کاوه، چې اوس زه د ټولې نړۍ پاچا یم، وروسته مې اړیکه له هاشم سره پراخه شوه، د مهندس په نوم مې پېژنده، محمود رهګذر مې هم پرېښود او نورین تلویزیون هم؛ هره ورځ د مهندس کورته ورتلم، ډېر وخت وروسته پوه شوم چې په کابل کې د مخدره توکو له سترو پلورونکو څخه دی، کورته به یې د ورځې سلګونه کسان راتلل، یا له جوپې او یاهم له ډېرو پیسو سره، زما شیشه په بشپړ ډول برابره وه، د جیب مصرف یې هم راته راکاوه، یو موبایل یې هم راته واخیست، د موټر ماشین مې جام شوی و، هغه یې هم راته جوړ کړ، تر نن پورې ما دې پوښتنې ته ځواب نه دی موندلی چې هغوی له ما سره ولې دومره مرسته او ښه چلند کاوه؟ ولې یې د څکولو له پاره دومره شیشه له کوم بدیل پرته راکوله؟...

زما شیشه دومره زیاته شوه، چې نور ورو ورو ټولو ته زما روږدي ښېره څرګندېده، په ورځ کې مې دوه تر دريو ګرامو مصرفوله، موده وروسته هاشم ورو، ورو له ما څخه واټن نیوه او علاقه يې مخ په کمښت وه، يوه ورځ يې راته وویل: که چېرې غواړې هره ورځ يو ګرام شیشه درکړم، باید تر پُل سوخته لاندې زما د نشه يي توکو پلورنځي ته راشې، کنه نور دا ډول نه کېږي.

دا داسې وخت و، چې زرګونه پوښتنې مې په زړه کې پیدا شوې وې او غربت هم خپل څادر پوره راباندې غوړولی و، په زړه کې مې وویل: که پل سوخته ته لاړ شم، نور د هرڅا له سترګو پنا کېږم، حل لاره څه ده!؟ فکر ته مې د کاکا عزیز هوټل راغی چې کاکا عزیز تازه د شیشې په پلورلو پيل کړی و، دومره پیسې او پېرودونکي يې پیدا کړي وو چې سکرتر او ساتونکي يې هم ځان ته نیولي وو، د هغه خوا ته ورغلم او ورته ومې ویل، چې زما وضعیت ډېرخراب دی؛ مسکی شو، ویې ویل: نادري صیب! کار دې جوړوم.

ومې ویل څنګه؟ ویې ویل: راځه خپل موټر بدل کړو.

ومې پوښتل یانې څه؟

دوام يې ورکړ: موټر دې راکړه، زما موټر، زر افغانۍ سره له ډېرش ګرامه شیشې درکوم، ته دې يوازې موټر راکړه، ما هم خبره ورسره ومنله او وړاندیز مې يې قبول کړ.

زما موټر«۲۰۰٦» ماډل کورلا وه، هغه يې راڅخه واخیسته او د (Seena) په نوم يې غټ مصرفي موټر راکړ؛ شیشه مصرف شوه او تېل هم خلاصېږي؛ خمار مې نور هم ډېر لوړ شو خو مخ په ښکته کېدو روان و... سخت

ودردېدلم او موټر مې د پل سوخته دروازې ته نږدې پرځمکه سینه ولګوله، زه سترې وم د مهندس په خبره یوه لاره دا ده، چې باید د پل سوخته بېخ ته ځان ورسوم او له هغه ځخه شیشه وپېرم؛ بیا مې فکر وکړ که تر پل سوخته لاندې شوم، نو غوره او پېژندل شوی شخصیت مې له صفر سره ضربېږي؛ باید څه وکړم؟!

دا وخت مجبور وم چې تر پل سوخته لاندې تګ ته تسلیم شم، خو بیاهم زه پرځپل ځای ولاړ وم، یو هلک چې توره څېره یې درلوده، دا مې مخې ته ودرېده، دا هلک مې وپېژنده، کله به چې مهندېس د هاشم په نوم غږ ورته کاوه، دا همغه کس دی، دا کس تر پل سوخته لاندې د نشه یي توکو د وېش یو له سترو مسولینو څخه و، د اصلي سوداګر نوم سید هاشم و، دا کس اوس پوهېده چې زه ورِی، خمار او ناروغ یم؛ په بېلابېلو بڼو یې بېلابېل پیغامونه راته وړاندې کول...: که چېرې د پله بېخ ته لاړشم نو هم دوډی شته، هم مواد شته او هم نور امکانات راته استوي، خو زه پخپله په دې چورت کې وم چې ایا د پله بېخ ته لاړ شم که نه؟ زړه نا زړه وم... زما په وجود کې د ننه وجدان او ضمیر په نوم یو څه لا ژوندي وو او اجازه یې نه راکوله چې د پله بېخ ته لاړ شم. ځینو روږدو چې زه پېژندلم موټر ته مې نږدې کېدل، وروسته یې راته وویل: راځه د ننه، یو دوه دوده شیشه یې راکړه، خو لوږې او خمار سخت ګیر کړی وم... تور رنګي هلک ته مې یو لیک ورکړ، ورته ومې ویل چې د پله بېخ ته یې یوسه او سید هادي ته یې ورکړه څو شیشه راکړي، لیک یې وروړ او نیم ګرام شیشه یې راته راوړه، یوځل دویم، درېیم ځل یې دا همکاري له ماسره وکړه، وروسته تور رنګی هلک هم راښخه ورک شو...

دا شپې او ورځې مې تر پل سوخته لاندې تر ټولو خونړۍ شپې او ورځې وې، هره ورځ د پل سوخته له بېخه لسګونه جنازې پورته کېدلې، د پهلوان په نوم یو انسان وژونکی شیطان چې سپکو او درنو وسلو باندې سمبال و پله ته به هر وخت راتله، هر څوک به چې لږ بد ورته ښکاره شول او د ده په طبیعت به نه وو برابر، ډز ډز ویشتل به یې... یوه ورځ مې ښه په یاد دي مازیګر نږدې تیاره کېده، همغه تور مخی هلک مې د پله لاندې سید هادي ته واستوه چې نیم ګرام شیشه راوړي، دا هلک لاړ، زه یو ساعت ورته انتظار شوم، خو رانغی، دوه ساعته وروسته پوه شوم چې له موادو سره تښتېدلی دی. د خمار او لوږې مالمال خوب مې پر وجود لمن غوړولې وه، له سترګو مې اوښکې بهېدلې، کله به مې چې د پله څلورو اړخونو ته وکتل نو ژړا به مې یو څه تم شوه، د غم یوې تورې پردې زما سترګې پوښلې وې، د خپل خړ، غمجن چاپېریال ننداره مې کوله، روغ انسانان مې لیدل، چې خپل ساده او هوسا ژوند ته دوام ورکوي او یا هغه زوی او مور چې په پلې ډول زما د خړجن موټر له څنګه تېرېدل، هغه هلک چې د مکروني کڅوړه به یې په لاس کې وه، فکر مې کاوه چې دا کیسه انشتین ته پاتې کېږي چې خپلې مور ته به یې د مثال په ډول زمزمه کوي، (اوښکې) مې په خیرنو لاسو پاکې کړې او د اوښکو اوبه مې په لاسونو باندې وچې شوې، د ژوند د خوښو ورځو په یاد چې هغه وخت د ښوونځي په څلورم ټولګي کې وم ولوېدم، څه خوشحاله ژوند و، د شپې مې مور په خپلو مهربانو لاسونو مکروني پخول او د مکروني له خوړلو وروسته یې په ښکلې مهربانه غېږه کې ویده کولم، که به وپرنجېدم په بېړه به یې خپل لاس زما پرسینه کېښود او ګرم به یې ساتلم چې یخ مې ونه وهي او خولې شم.

هغه ماشوم او مور ته چې زما سترګې د موټر له مینځه ورته پاتې وې او ورکتل مې؛ ښکاره وه زړه مې د مور د لاس پخلي ته تپېده، له ځان سره مې وویل: نن شپه یې مور حتمًا مکروني پخوي او که چېرې هغه وېرنجېږي شاید مور یې پرسینه لاس ورکېږدي، زړه مې د مور نرم او مینه ناک لاسونه غوښتل چې په سینه مې یې کېږدي او زما د کلونو نا کراری ارامې کړي.

د ننه ترخه جدایي مې په کرار ډول غلې کوله، مګر همدا شېبې وې چې یوه بغض لکه د سکاره راکټ چاودنې په څېر زما له سترګو څخه د اوښکو سېلاب جاري کړ، ډېر دردوونکی حتا له هرې ممکنې پېښې هم ډېر دردوونکی و، وروسته له څو اونیو د خپلې مور په یادونو کې ولوېدم، نه پوهېدم شاید زړه مې ورپسې تنګ شوی و، د نشې او خمار پر وخت مې کورنۍ هېره کړې وه، خو مور مې هېڅ وخت له یاده نه وتله.

فکر مې کاوه چې ټولو اقیانوسونو زما د سترګو له اوښکو څخه سرچینه اخیستې او پر ځمکه بهېږي، په ټول بدن مې سړه څپه خوره شوې وه، غاښونه مې ډېر ژور یو په بل باندې لګېدل، هغه غږ مې چې له غاښونو پورته کېده، روسي اورال موټر مې یاد ته راتله، دا هغه موټر وو چې له خپلې ګرانې مور او ماما نسیم سره به له نهرین او اندراب څخه نورو سیمو ته په سفر په کې تللم. په ذهن کې مې بېلابېل فکرونه ګرځېدل، حالت مې خراب و، خپل وروستی سیګرېټ مې ولګاوه، ډېر ژور ټوخي راګیر کړم، مجبور شوم خپل ساړه او ځېږه لاسونه په خپله سینه باندې کېږدم، ډېر ارامه خوب راباندې راغی، د موټر څوکۍ مې نوي درجې شاته چپه کړه، دا وخت په ټوله سیمه د تیارې څپه خوره وه، کله چې ویده شوم، ډېر عجیب خوب مې ولیده: ناڅاپي په قاتل او بې رحمه شیطان بدل شوی وم، د کور

دروازه ټکوم، خور مې دروازه را خلاصوي، هغه وباسم او د مور کوټې ته مې ور د ننه کېږم، هغه هم وباسم، خپلې کوټې ته د ننه کېږم، خپله مېرمن وژنم، د پلار خواته مې ورځم او ژوند یې ترې اخلم او بیا دویم ځلي د مور کوټې د ننه کېږم، هلته پر دېوال زما دې شپږ کلنی انځور راځوړند و، هغه ته گورم چې سخت ژاړي، سر او مخ ته مې سوکان نیولي دي چې د موټر د دروازې ټکولو را ویښ کړم، وېرېدلی او وارخطا له خپل ځایه پاڅېدم ، دا مهال سخت یخ و، خو په دې یخه هوا سربېره زما په وجود خولې را خورې وې، چې گورم د موټر د دروازې ترشا د سید هاشم هادي شاگرد امیر علي ولاړ دی، هغه مسکی شو او پوښتنه یې وکړه څه دې وکړل رئیسه؟

په داسې حال کې چې په ټول بدن باندې مې د درد څپه خوره وه، د خبرو کولو توان مې نه درلوده، ومې ویل: خمار یم! مسکی شو، ویې ویل: موږ خو هغه تور هلک ته چې تا رالېږلی و، یو گرام شیشه ورکړه.!

ورته ومې ویل: چې ماته یې نه ده راکړې، دلته هېڅ نه دی راغلی ویې ویل: خی تښتېدلی دی، لږ صبر یې وکړ بیا یې وویل: زه د سید هادي خواته ورځم هغه ته ستا ستونزه یادوم او وروسته احوال درکوم.

ما ویل سمه ده، د سیگرېټ قوطی مې راواخیست څو یو سیگرېټ روښانه کړم، گورم چې سیگرېټ مې خلاص شوي دي.

له یخنی نه مې پښې رېږدېدلې، د امیر علي د راتگ په پار مې شېبې شمېرلې خو شکر ډېر ژر راغی.

ویې ویل: موټر دې قلف کړه، د پله لاندې راشه چې سید هادي کار درسره لري، ژر له ځایه پور ته شوم د موټر دروازې مې قلف کړې، څو گامه مخکې پل سرخ و، کله چې ترپله لاندې روان وم، ډېرو خاطراتو مې ذهن ته لاره ومونده، دې «کارل آیکنبیري» اړیکه چې ځواب مې ورنه کړ، د

یونسکو د غوره خبریال «جایزه» او زما په اړه د «ولسمشر خبرې»... دا او دې ته ورته نور ټول خاطرات زما خمار ته را د ننه شوي وو.

امیرعلي مې لاس ونیوه او ویې ویل: پام کوه چې ونه ښوییږې

ډېر ورو، ورو ښکته شوم، احساس مې کاوه چې د انسان خورې تمساح خولې ته د ننه کېږم، کله چې ورسېدم ترهغه مې چې د سترګو لید کار کاوه «ګیسونه» روښانه و او زرګونه کسان تر پله لاندې نږدې نږدې پراته وو، یوه خړ رنګي ګرد ټوله سیمه پوښلې وه، د شیک پوشه نجلۍ انځور لکه دې قالین پلورونکي د دکان پر دېوال چې راځوړند شوی وي، را ځوړند و او څو دانې جعلي بانک لوټونه یې سوري کړي وو، هغه هم نصب وو، یوه روږدي په ډېر ښکلي خط په دېوال لیکلي وو: «همه از مرگ می ترسند، من از رفیق نامرد.»

سید هادي ډېر جدي او په لوړ غږ وویل: دلته راشه! ورغلم، ترخنګ یې کښېناستم، شیشیي پیپ مې ولیده، یو ګرام شیشه هم ورسره وه، دا یې زما مخې ته کېښودل، ما هم لایټر ترې لاندې کړ، درې څلور قوي دوده مې کش کړل، ما چې له سید هاشم سره کوم جنجال درلوده، همدغه دریو دودونو هغه لانجه ختمه کړه او زه مکمل د ده پروړاندې بدل شوم او دی راباندې بریالی شو.

راته ویې ویل: تر هغه وخته پورې چې تر پل سوخته لاندې یې ټول امکانات درته برابر دي، همدلته اوسه هرڅه چې څکوې ویې څکوه، ډوډۍ هم درکوم، نور دې باندې څه کوې؟ د باندې په پرتله همدغه ځای ستا له پاره ډېر ښه دی، زه په همدې حالت کې ورو- ورو خوب ونیولم.

لومړی. څو ورځې ښې وې، سید هادي یو څه مرسته راسره کوله خو د وخت په تېرېدو سره یې همکاري کمېده او په پای کې باید زه پوه شوی وای په کوم ځای کې چې زه یم کوم ځای دی؟

د دې له پاره چې وتوانېږم پل سوخته او هغه څه چې اصلي حقیقت دی معرفي یې کړم، ښه به وي چې لومړی لاړ شوو د پل سوخته د خلکو پېژندنې ته او وروسته دې ته چې تر پل سوخته لاندې څه کېدل، څو خلک رهگذر او د ده نیږدې دوستان د کابل او افغانستان د لویې سرطاني غدې په حیث وپېژني.

## د ویجاړوونکي ټولګي د ډلبندۍ په اساس د زیان رسوونکو ښکېل ټولی

د پل سوخته ډله زموږ په هېواد کې یوه منحوسه طبقاتي ډله ده، په لومړي سر کې په دوه اصلي ډلو چې نورې ډلې له هغه ځخه سرچینه اخلي د موندونکو ډله او دې مصرف کوونکو ډله.

### لومړۍ ډله« موندونکي»:

پل سوخته له جغرافیایي اړخه د پولیسو د درېیمې حوزې د اتصال کړۍ ده، درېیمه حوزه، پینځمه حوزه او شپږمه حوزه د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې معینیت په هره حوزه کې د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې آمریت او د هغه په تشکیل کې یو آمر او دوه کارمندان کلونه کېږي چې دا جوړښت یې رامنځته کړی او امکانات ورکوي؛ په هره حوزه کې یو آمر او دوه کارمندان د خپلو ګډو ګټو د ترلاسه کولو په موخه په ډېره ارامه توګه یوې منل شوې پایلې ته رسېږي او په ډاډه زړه د ځان په بیه د خپلو ګټو له پاره مبارزه کوي، چې دغه طبقه (ډله) په دریو برخو تقسیم شوې ده.

**لومړۍ کتګوري**: د موندونکو په ډله کې د درېیمې، پینځمې او شپږمې حوزو د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې کارمندان شامل دي، هره ورځ په دوه مشخصو وختونو کې دې پله ببخ ته راځي: مخکې له غرمې او شپې ته نږدې مانښام مهال خپل حق اخلي او په ډېره ارامه توګه بېرته خپلو حوزو ته ځي او په هر وخت کې په دری واړه ځایونو او یا دغه دریو حوزو کې د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې مامورین په جریان کې پرېږدي، د دوی حق ورکول کېږي او بل هېڅوک د دې حق نه لري چې ووایي: ستاسو

سترګې پټې دي او ظلم کوي، که چا ته خپل حق ونه رسېږي، نو له یوه ساعت نه په کمه موده کې ځارخونې ته رسېږي.

هر څومره چې کارمندان په پلورونکو باندې فشار راوړي همدومره فشار پلورونکي په روږدو کسانو باندې راوړي څو هر چاته خپل حق لاس په لاس ورسېږي.

پل سوخته د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې کارکونکو له پاره د شیدو په غوا باندې بدل شوی وه، هرکله به چې دوی د هغه سینو ته لاس ور وړ، نو لاسونه به یې له شیدو ځخه ډک و، د دوی دې زهر شي.

## د موندونکو دویمه ډله:

د یوې لویې مافیایې ډلې شاګردان یا هم پلورونکي چې باید په ورځ کې له دوه تر درې سوه ګرامو زیات مخدره توکي وپلوري، هغوی چې مخدره توکي په اجاره توګه پلوري په میاشت کې دوه لکه اوولس زره«۲۱۷۰۰۰» افغانۍ معاش لري او هغوی چې شاګردان دي او په اجاره پلورونکو یې پلوري د میاشتې پینځلس زره افغانۍ معاش لري او د موادو ټول مصرف یې هم وړیا دی.

درېیمه ډله زورور: دوی په خورا هنر خپله ګټه ترلاسه کوي، په ناڅاپي توګه تر پله لاندې ښکته کېږي، کمزوري، بې کسه او مفلسین چې د ډېر خمار له لاسه په خوځنده مړو باندې بدل شوي دي، په لغتو او سوکانو یې په سر سر وهي، په ځینو وختونو کې یې د برچې په واسطه ټپي کوي او ځینې وخت یې هم د مرمۍ په واسطه ګواښي چې په راتلونکو برخو کې به توضیح ورکړم.

دغه زورور په خپل ټاکلي وخت راځي له اجاره یې پلورونکو څخه یو مقدار پیسې او مواد ترلاسه کوي او په خپل خوند او معیشت کې دي او هر پلورونکی د ګیدړې په شان له هغوی ډارېږي.

تر پل سوخته لاندې د بېلابېلو طبقاتي ډلبندیو په اساس د پیسو د چاپ ماشین او د مخدره توکو پروړاندې د مبارزې پولیسو، د مافیایي ډلې شاګردان پلورونکو، زورورو... او مجرمو انسانانو په نوم یوه ډله باندې بدل شوی دی.

خو اساسي پوښتنه داده چې پیسې یې له کوم ځای څخه راځي!؟ دا څه ډول پیسې دي چې د هرچا له پاره د میاشتې دوه لکه او د ځینو له پاره په لکونو عاید لري!؟ ایا کله چې د پل سوخته پرسر تېرېږی، د ژوند تر ټولو سترې کوونکې شېبې نه احساس کوی!؟ حتا د دې ځای بد بوی ستاسو له پاره خورا وېروونکی او ناخوښوونکی نه دی!؟ د ولسمشرۍ ماڼۍ دا څنګه منلای شي چې عادي کار کوونکی یې له سلو تر دوه سوه زرو افغانیو پورې عواید لري؟ ایا تر پل سوخته لاندې د بانک نوټونو د چاپ نمره وهونکی ماشین دی!؟ دا ټول لویه مبالغه نه ده، دا د روږدو کسانو هغه پیسې دي، چې روږدیتوب دوی د هر ډول جرم او جنایت ترسره کولو ته اړ کوي او هغوی د زیاتو پیسو د چمتو کولو له پاره اړکېږي، چې په پراخه کچه په افغانستان کې د نا امنۍ او فقر په رامنځته کېدو کې رول ولري.

## دویمه ډله د مالیې ورکولو او لاس وهنې پرته د توکو مصرف کوونکي

د توکو مصرف کوونکي تر پل لاندې د پلور بازار اصلي ځواک تشکیلوي، اوس د ډېر عاید له مخې د مخدره توکو د مصرف کوونکو ډلبندي درپېژنم، په مخدره توکو روږدیتوب شوخي او ټوکې نه دي؛ کله چې سهارله خوبه پاڅېږې، د ټولنې، فرهنګ، کورنۍ او اقتصاد په نظرکې نیولو پرته مجبور او مکلف یې چې د یو ګرام له پاره دری سوه افغانۍ په جیب کې ولرې، څو چې پورته شې حد اقل ژوندی شې، په لاسونو او پښو کې دې انرژي پیدا شي؛ اوس ستا د ژوند ستره پروژه د دری سوه افغانیو پیدا کول دي. په لومړیو میاشتو کې د کال تر لومړیو پورې روږدی (معتاد) له کوره هر شی یې چې په نظر ورشي پټوي یې او د پل سوخته ببخ ته یې وړي؛ تر پل سوخته لاندې یوه ډله ډېر خونړي قصابان موجود دي، چې د هغوی د ډېرو عوایدو سره بل هېڅ ډول سوداګري سیالي نه شي کولای.

روږدي (معتاد) به چې هر جنس په بېړه تر پل سوخته لاندې ور وړ هغوی به د مال اخیستونکي په نوم د روږدي د رویت له مخې ترې پېرلو، مثلاً که چېرې روږدی ډېر خمار وي د دوه زره افغانۍ جنس به یې ترې په دوه سوه افغانۍ اخیسته او که روږدی به لږ خمار و نو د پینځه زره افغانیو جنس به یې ترې په پنځه سوه افغانۍ اخیسته او که به چېرې روږدی لږ په خود کې و او په خپل ځان به پوهېده، دې دوه زرو مال به یې په پینځه سوه افغانۍ ترې اخیسته، روږدي به د مال اخیستونکي په نوم د غلا جنس د پلورلو سره سم د موادو په پېرودلو پسې لاړ او همدارنګه سلګونو حتا زرګونو روږدو

کسانو به ډېر قیمتي شیان تر پل سوخته لاندې وړل او دې غلو شریکانو به په ټیټ قیمت ترې اخیست.

یو لب ټاپ کمپیوټر چې ډېر مډرن او ښکلی و، په بازار کې به یې قیمت شاید اوه سوه ډالره و، په خپلو سترګو مې ولیدل چې مال اخیستونکي په ټیټ قیمت واخیست او د نیم ساعت په تېرېدو سره یې په باندني مال اخیستونکي په شل زره افغانیو خرڅ کړ، په همدې ډول ډېر لوړ او قیمتي موبایلونه هم، حتی زېورات هم پلورل کېږي، یوه بله لویه تراژیدي چې د روږدو په خپه داستان کې موجوده ده، هغه دا ده کله چې د خور، مور او مېرمنې جواهرات او قیمتي اشیا غلا کوي، په هغه ځېره چې دوی یې لري هرې زرګرۍ ته یې چې د خرڅلاو له پاره وړي، یایې له هغوی څخه نه اخلي او یایې هم پولیسو ته په ګوتو ورکوي؛ مګر مال اخیستونکي ډېر ځواکمن او قوي نهنګان دي، چې په لومړي سر کې ټول ځیزونه اخلي.

د نمونې په توګه، یوه پینځه ګرامه عربي طلا لښتۍ د یوې یو ګرامه ایرانۍ لښتۍ په قیمت له روږدي (معتاد) څخه اخلي په پای کې روږدی مال اخیستونکي ته ښه په اخلاص دعا هم کوي. مال اخیستونکی هم حوزو او مربوطه برخو ته خپل حق ورکوي او د ښار ټولې غلاوې پرته له بربندېدو او ښکاره کېدو دوی خوري، په داسې حال کې چې بې جوازه تمانچې هم له ځان سره لري او دوی په خپله روږدي نه دي، د شپې له هوس بازۍ، شهوت رانۍ او شراب خورۍ پرته بل کار نه لري، دختر بازان یې له تازه نفسو نجونو سره په مزو او معیشت کې دي؛ او بچه بازان یې له تنکیو ځوانانو سره په معیشت کې وي چې د سلطان د زامنو په څېر ښکاري او څوک یې د مستقیمې نندارې توان نه لري، حتی وایي که چېرې روږدی

(معتاد) کوم وخت قیمتي څیزونه راوړي، د روږدي کڅوړه ترې اخلي او دی په یوه ښنده کې وژني.

روږدي (معتادان) د خپلې کورنۍ ټوله مادي او معنوي هستي د سخت زړي ښامار په ډول خوري او د هغه لېوه په څېر چې لومړی ښکاري له مخې لرې کوي او وروسته د خپلې کورنۍ له پاره پر چمتو شوي لاسي بم باندې بدلېږي. مال اخیستونکي روږدو ته وایي چې زېورات، جامې، بوټ، ظروف او داسې نور څیزونه حتا بې ارزښته اوسپنه هم راوړئ اخلو یې. په همدې خاطر دوی هرشی راوړي او دې دلالانو ته یې په ټيټه بیه ورکوي، څو ځلې مې په خپلو ګنهګارو سترګو لیدلي دي چې روږدی (معتاد) دیګ بخار په داسې حال کې چې بخار یې هم نه دی ویستل شوی، له خوړو ډک وي، هغه یې له خپل کور څخه راایستلی او په همدغه ناوړه غلو یې پلورلی دی. په دېګ کې چې کوم خواړه دي دا د هغه ماشومانو دي چې پلار یې روږدی شوی دی او کورنۍ یې په ډېره مینه او شفقت سره خواړه خپلو بېوزله بچیانو ته پاخه کړي دي، خو مال اخیستونکي یې په خپلو شیطاني لاسونو خوري، رب دې دوی هلاک کړي.

یوه کورنۍ او ماشومان به یې څومره د نشتوالي او کمښت احساس وکړي چې د خولې لمړۍ یې د پلار په واسطه غلا کېږي او د دوی بېوزلی او کمښت ته نه ګوري؛ هغه کوچنۍ خوشحالی چې د شپې ډوډۍ ده له هغوی اخلي، د دې پرځای چې پلار یې ورته په مینه او ورین تندي کورته خوراکي توکي راوړي او د خپلې کورنۍ ترڅنګ یې په ارامه او خوښ زړه سره نوشیجان کړي، حتا فکر یې هم نه شو کولای چې دغه کورنۍ به له څه ډول زړه تنګون او بحراني حالت سره لاس او ګرېوان وي.

وروسته له هغه کومې پیسې چې د روږدي د ماشومانو د جوسو په بدل کې ورته ورکړل شوې دي، د دوه ساعتونو له پاره یې هم نه نشه کوي. اکثره روږدي (معتادین) د خپلې کورنۍ د قیمتي څیزونو له غلا کولو وروسته له کور څخه شړل کیږي او د روږدیتوب په خمار کې تر سړکونو او پلچکونو لاندې پاتې کیږي او د داسې موادو د ترلاسه کولو پیسې د هفت خان رستم د فتحې په څېر ستونزمن او د لاسرسي وړ نه دي.

مال اخیستونکي هغه لوی شیطانان دي چې منفي بشري ضد ځواک او سخت زړیتوب په اړه روږدو ته درس ورکوي او روږدي د پیسو د چاپ ماشین په څېر د مال اخیستونکو له پاره له یوې خوا پیسې چاپوي، یو شمېر روږدي (معتادین) له کور څخه تر شړلو وروسته د غلا په برخه کې داسې وړتیا او استعداد ترلاسه کوي، چې جوړ انسان به داسې احساس کوي چې که له دغه استعدادونو څخه په سمه توګه د فزیک په برخه کې ګټه پور ته شوې وای د دوی په موجودیت کې به نور د انشټین نوم هم نه وی اخیستل شوی.

(تک و دو) یا هم په بل عبارت لاس او پښې کول هغه ښوونځي دي چې هر روږدي ته د مال اخیستونکو د تیوري په اساس اجازه ورکوي، فکر وکړي چې د خپل قدرت په اندازه چې هرڅه په واک کې لري په غلا کې دې ترې کار واخلي.

(تک و دو) یانې د لاس او پښو ډېر خطرناک خلک دي هغوی یوه با تجربه او په کار پوه ډله باندې توانېدلي دي چې له ځان نه یې مخکې کړي، یواځینی کار یې په کوڅو کې د هغه کسانو وژل دي چې له اقتصادي اړخه په ښه موقف کې دي، هغوی ګرځي او نړدې ماښام مهالویني چې د

کومې کورنۍ خلک په بشپړ ډول وځي، یو شمېر کورنۍ دي چې د واده او یاهم نورو مراسمو له پاره ټول یوځای له کور نه وځي او وروسته له ساعتونو کورته راځي، د یادو مواردو په لیدو سره غله له خپلو مشرانو سره په اړیکه کېږي او د غلو دغه مشران یا استادان په یوه شېبه کې دغه ځای ته نږدې راځي او د اطلاع رسوونکو دغه ماموریت پای ته رسېږي، د دوی په منځ کې دوه تکره ډلې موجودې وي: لومړی هغه کسان دي چې لوړو ځایونو ته په ډېرکم وخت کې پورته شي، دویم هغه کسان چې په اسانۍ سره وکولای شي قلفونه خلاص کړي، په لومړي ګام کې د اوسېدو ځای یا کورته د ننه کېدو سره سم دوی هڅه کوي چې قمیتي شیان لکه: پیسې، طلا او قیمتي جامې ترلاسه کړي او وروسته تردې له بایسکل، موټرسایکل او داسې نورو ورته شیانو سره علاقه لري، کځوړې ښې ځای پرځای کوي او له ځلوېښتو دقیقو څخه په کم وخت کې کار پای ته رسوي، له وتلو سره سمدستي د پولیسو نږدې پوستې ته ځان رسوي، د پولیسو حق ورته ورکوي او له همدې شېبې وروسته له مال اخیستونکو سره په اړیکه کېږي او له دوه ساعتونو څخه په لنډ وخت کې پلورل شوي جنسونه د هېروییېنو او شیشې په دود بدلېږي؛ جالبه داده چې د پولیسو هېڅ یوه پوسته او د حوزو هېڅ یو آمریت له دغه ډول غلو سره جدي چلند نه دی کړی/نه یې کوي، بلکې د دې ترڅنګ دوی د خپلو ستراتیژیکو ملګرو له جملې څخه ګڼې.

# لوی موندونکي او ناروغ غله

د روږدو(معتادانو) په مینځ کې فېشني او بډایه ډلې هم موجودې دي، حتا همدغه روږدي چې د لاس او پښو یا هم کوښښ (تک و دو) د ښوونځي پیروان دي، چې په لویه کچه په غلا او موندنو لاس پورې کوي، لومړی برخه یې ډېر حرفوي کېڅه بوران دي، تردې حده چې یوه ورځ مې له هغوی څخه یوه ته وویل: له جېبونو نه څه ډول پیسې وهې چې څوک هېڅ نه خبرېږي؟ په داسې حال کې چې د سل گونو سل بانک لوټونه، پنځوس شل او لس افغانیو بانک نوټونه یې زما دې کورتۍ په جېب کې واچول او ویې ویل: د یوه او بل پروړاندې قدم وهو، زه دې له څنگ څخه تېرېږم، په دې ډول یې اخلم چې ستا هېڅ پام هم نه شي، « کله مې چې له څنگ څخه تېر شو یوازې دومره پوه شوم چې کورتۍ مې وښوربېده او وروسته یې وویل: وگوره! ومې کتل هغه ټولې پیسې مې چې په جېب کې ابښې وې اوس د هغه په لاس کې دي.

له لویو موندونکو نیولې تر ناروغه غلو پورې د دوی ټولو په اړه په ډېر څه پوه شوم، پرته له دې چې د دوی په هېڅ حرکت کې مې ونډه او تجربه نه درلوده خو ومې کولای شول چې د ښوونځیو په اړه یې هم معلومات ترلاسه او له نظره تېر کړم؛ زموږ له پاره اړینه ده چې وروستي جرایم له مجرمینو سره وپېژنو او د کړنو په اړه یې خبر واوسو.

همدغه کېڅه بور د خپل استاد کیسه راته وکړه: که چېرې زما استاد ستا په جېب کې لاس د ننه کاوه درته ویل به یې چې ته درې زره افغانۍ زرگون او دوه زره افغانۍ وړې پیسې لکه ۱۰ افغانۍ او ۲۰ افغانۍ به دې درلودې، دومره ځیرک و چې کولای یې شوای چې یوازې هماغه درې زره را وباسي،

په داسې حال کې چې نه به یې لیدلې خو خپلې پیسې یې تشخیصولې، کله چې تاسو پوهې او وړتیا ته د خپل هېواد د اړتیا درک وکړی او پوهېږی چې مثبت او غوړېدونکو استعدادونو ته څومره زیاته اړتیا ده، خورا یو لوی درد او غم به دې په وجود کې را ژوندی شي، که چېرې له دغو استعدادونو څخه په مثبتو برخو کې کار اخیستل شوی وای، نو افغانستان چې اوس په کوم حالت کې دی په دې حالت کې به نه و، ډېر لوړ او دې عزت موقف به یې درلوده.

ډاډه یم چې په اوسني ناوړه حالت کې به نه و او ګاونډیو هېوادونو ته به مو د مرستې په خاطر لاس نه اوږدېده.

لوی موندونکي (لوی غله) ډېری د صرافیو، طلا فروشیو او نورو قیمتي اجناسو په مارکېټونو کې د یوه ځیرک مار په څېر ګرځېدل د کار په پای کې به یې زموږ یو شمېر هېواد وال د خپلو زهري نېښونو په واسطه چیچل، لوی موندونکي (لوی غله) هغه روږدي (معتادان) دي چې د ظاهري ټیپ له پلوه ډېر فېشني دي خو په اصل کې روږدي، غله، لاره نیوونکي او ناځوانه دي؛ خپل سر او صورت ته ښه پاملرنه کوي چې هېڅکله هم هغوی روږدي (معتادینو) په څېر نه معلومېږي.

د مثال په توګه: سهار چې کله د خصوصي او شخصي لیلیو محصلین د درسونو په لوري ځي، همدغه غله په ډېره دقیق توګه له جامو نیولې د محصل تر چلند ټول تمثیلوي او توانېږي چې په اسانۍ سره لیلیې ته ننه شي؛ ساتونکي په دغه غلو باندې د محصلینو خیال کوي، کله چې د ننه شي وروسته له دوه دقیقو څخه په ډېرې هوښیارۍ سره له دری/اخلور پایو لب ټاپونو سره جوړه په منظم ډول وځي، دا ډول موندونکي (غله) ډلییز او

ټيمي کار ترسره کوي؛ يو شمېر يې د ورځې لخوا، کورونه، دوکانونه، پلورنځي، بېلري تېل پلورنځي، تلويزيون پلورنځي او قصابۍ تر نظر لاندې نيسي، په هغه بڼه چې د ننه کېدو او تېښتې لاره په دقيقه توګه سنجوي. نږدې شپه مهال چې کله بېرته د پلونو لاندې ځي، د ډلې مشر، مرستيالان او نور وګړي د نقشې راوړنکو ته انتظار دي، وروسته يوه ګډه جلسه نيسي، نقشه اخيستونکی د کاغذ پرمخ هرڅه تشريح کوي او وروسته د ننه کېدو او تښتېدو نقشه ورته رسموي، اټکلي د ننه کېدل هم ورته بياځلي ښيي مثلاً: د حويلۍ پرمخ دوه سپورتي بايسکلونه، يو موټرسايکل، يو جنراتور او نور... موجود دي او د ننه خونو کې دوه تافن، يو لب ټاپ او نور...

عمليات تل د شپې له دوه بجو وروسته پيلېږي، په دې دليل چې د شپې له نيمايي څخه وروسته کورنۍ په ژور خوب ځي او کله يې چې د غلا مالونه واخيستل بېرته د پله خواته ګرځي او د سهار له سپېده داغ (رڼاکېدو) د مخه مال اخيستونکي اجناس اخلي او پلورونکي خپل سهار له لاسته راوړنو پرته نه پيلوي.

د کورونو، دوکانونو په لوټ کولو کې يې مهارت په دې ډول دی چې څلور تنه حريم يا کورته د ننه کېدو سره سم د اجناسو تر غلا کولو او تښتېدو وروسته لږ غږ هم نه پورته کوي څو د کور څښتن را ويښ نه شي.

په داسې حال کې چې د شپې يې بڼه غلا کړې او جېبونه يې له پيسو ډک شوي دي، سهار په څو ليني موټرو کې هغه وخت چې کار کوونکي او محصلين د خپلې دندې او درس په لور روان وي، پورته کېږي او قيمتي موبايلونه غلا کوي چې دا هم په مال اخيستونکو پلوري؛ وروسته هر يو له يو کم عمره هلک سره د څو شپو له پاره په کوټې سنګي کې عدالت هوټل

ته ځي د دوی په وینا دری/څلور شپې په کافي اندازه هېروئین، په ډېرو مغذي خوراکي توکو، په ښه لپ او جېب سره خپل وخت تېروي، د معیشت موده یې ترهغه دوام کوي څو چې پیسې یې خلاصې شي، بیا ځلې همدا داستان (کیسه) تکرارېږي: بیا خیانت، غلا، چور، چپاول د تل په څېر لکه عدالت هوټل او دې ته ورته ځایونو کې کم عمره هلکان په نڅا او معیشت کې وي، حتا د همدې هوټل د څنګ هوټلونه د موندونکو (غلو) روږدو د فعالیت له امله ورځ تربلې وده او پرمختګ کوي.

زه هغه دوستانو ته چې دغه کتاب لولي د تجربې له مخې یوه سپارښتنه کوم، په بازار کې هېڅ وخت د روږدو (معتادانو) له لاسونو نه چې موبایل او... د خرڅلاو له پاره راوړي مه اخلئ، ځکه زموږ ډېری هېواد وال د وحشي چپاولګرو د دسیسو ښکار شوي دي چې د خپلو روږدو (معتادانو) لخوا ښکار کېږي. د پنځوس زره افغانیو په ارزښت موبایل شاید په تاسو په لس زره افغانیو خرڅ کړي، څو کسان نور هم په دې کار کې لاس لري، کله چې تاسو ګرم شی او خپلې پیسې را وباسی، تاسو ته یوازې د موبایل یو پوښ درکول کېږي چې د هغه پوښ دننه ودانیزه ښیښه اچول شوې ده، په ډېرو ځایونو کې کله چې د یوه سوالګر او ګدا په څېره کې ځان څرګندوي یوازې د معلوماتو له پاره راځي. که چېرې تاسو د پام وړ پیسې ولری، په بېړه سره د ډلې مشر ته خبر ورکوي، چې هغه تاسو لوټوي، معلومه ده چې لږ وروسته به د سترګو په رپ کې د ښار تر ټولو غریب او مفلس سړي یاست.

دا ټولې خبرې مې د دې په پار تاسو ته بیا تکرار کړې چې د کتاب په راتلونکې برخه: « د دنیا اخر» هغه وخت کله چې زموږ مستند داستان

(کیسه) پیلېږي، نو د روږدو کسانو د ټولنې، ډلبندۍ، ډلو او چالونو په اړه لږ شانته معلومات ولرئ، یواځینی حقیقت چې وړاندې کول یې د هندوکش غره په څېر زما پراوړو پروت دی هغه دادی: که چېرې تاسو په لوړو کتګوریو کې له روږدو سره کښېنئ، کله چې د ډلې له مشر سره مخامخ کېږئ، یا لېسانس دی، یا ماسټر دی او حتا په خپلو سترګو مې د حقوقو او سیاسي علومو ډاکتر د یوې لویې موندونکې (غلو) ډلې په راس کې ولیده.

په زړه پورې داده چې د دغو ډلو کلیدي کسان په انګلیسي ژبه هم پوهېږي، چې ځینې وخت د خپلو عملیاتو (غلاوو) د څرنګوالي په اړه بحث په انګلیسي ژبه پرمخ وړي.

کله مو چې مخې ته یو خراب او ځپل شوی روږدی درځي، د هغه ظاهر ته مه ګورئ، دې سړي په حقیقت کې شاید هغه د روږدتیوب له وخته ترهماغه شېبې چې تاسو یې وینئ مېلیونونه افغانان یې سوځولې وي او د سلګونو انسانانو ژوند یې تباه کړی وي؛ سربېره پردې چې ډېرخسیس (سوګت) خلک دي خو په ډېرو مواردو کې بیا ډېر مصرفوونکي او سخاوتمند دي، هغه نړۍ چې موږ یې لرو او ژوند په کې کوو، انسان په خپل دغه کوچنې لیدلوري نه شي کولای چې ټولیز قضاوت او قطعي حکم ورکړي، دوی د کار په جریان کې بې ګناه او مقدس دي خو په بل ماموریت کې بیا بشپړ بد او شیطاني عمل کوي. دغه ډول پرېکړې قضاوتونه ډېر ناسم او یو طرفه دي؛ د روږدو په مینځ کې هرڅه د منفي پر اساس پرمخ نه ځي، ټول مال اخیستونکي شیطانان نه دي او ټول روږدي هم غله نه دي، باید د ټولو په مینځ کې ښه له بدو تفکیک او بېل شي.

# سپين روږدي او څوانمرده مال اخيستونکي

په سړک شايد له ډېرو ککړو روږدو سره مخامخ شوي وی، چې لويه کڅوړه يې پراوړو وي او ظاهراً ډېرې ککړې او ناولې څېرې لري، خو د دې ناولې او ظاهري ککړې څېرې ترشاه يو ډېر غيرتي او څوانمرده روږدی ژوند کوي، که څه هم شيطان مال اخيستونکي د غلا له پاره زرگونه لارې ورته ښيي مگر هغوی هېڅکله هم په غلا لاس نه پورې کوي، همت يې اجازه نه ورکوي د سهار له څلورو بجو د غرمې تر دوولسو بجو پورې د پلاستيکي بوتلو او المونيمي قطيو په راټولولو باندې بوخت وي، د سهار له څلورو د غرمې تر دولسو بجو پورې که چېرې بخت ورسره ياري وکړي کولای شي چې سل افغانۍ په لاس راوړي او له دولسو تر يوې بجې پورې نشه کوي؛ د لماسپښين له يوې بجې د شپې تر اتو بجو بيا پيل کوي څو سل افغانۍ نورې ترلاسه کړي.

د دې ښار په ډېرو ځنډو کې د بيا رانيول شويو زباله دانيو او زړو وسايلو د پېر ځايونه زموږ تر سترگو کېږي. څوانمرده مال اخيستونکي هغه دي چې روږدی له غلا څخه پښېمانه کوي او د حلالو پيسو د ترلاسه کولو له پاره يې هڅوي.

يوه ورځ په کوټې سنگي کې د دې کباړ شويو وسايلو دوکان ته لاړم او له سپين ږيري کاکا څخه چې د بيا رانيول شويو د پېرودلو د يوې برخې مسؤل و مننه مې ترې وکړه او ورته ومې ويل: په دې کار سره دې يو شمېر له غلا څخه پښېمانه کړي او د ښار په پاکوالي کې دې هم برخه اخيستې ده، د ځان او همدې څوانانو له پاره دې هم حلاله روزي برابره کړې، په داسې حال کې چې زما په دغه خبرو سره يې په سترگو کې د خوشحالۍ

اوښکې راغلې، ویې ویل: «تراوسه پورې درې روږدو زما په مشوره نشه یي توکي پرېښي دي او اوس ډېر ښه روغ شوي دي چې تل ما ته دعا کوي.»

دارلامان، میرویس میدان او ... پل باغ عمومي کې چې کله په دې ډول استعمال د یوه ککړ سرې په نیولي او ستومانه خوله دا ډول خبرې اورې سمدستي ځرکندېږي چې دغه سړی د ځوانمردو روږدو له جملې څخه دی چې سهار څلور بجې د پله له لاندې راځي او د غرمې تر دوولسو بجو پورې اویا افغانۍ په لاس راوړي او وروسته د غرمې له پاره دوه بولاني اخلي او پنځوس افغانۍ هم د نشه یي توکو د یو ګرام لسمه برخه اخلي له دوولسو تر یوې بجې پورې یوازې هماغه څکوي او وروسته نیم ورځ او نیم خمار بیا په خپل نیولي، ستومانه او دردمن غږ: د مسافر برۍ موټرو په تم ځایونو کې د پل باغ عمومي، دارلامان، میرویس میدان په شا او خوا کې او.... چیغې وهي.

## کامېډي (تمثیلي) موندونکي (غله)

په دغه برخه کې تر پل سوخته لاندې یو شمېر نور روږدي غله هم شته چې د خپلو غلا شویو څیزونو په راوړلو سره ټول غمجن پل سوخته چې له سر او مخ څخه یې خاورې بادېږي خوښ او خندان ساتي.

یوه شپه شاوخوا دوولس بجې وې چې په یوه ډله کې ناست وو، دوه تنه له یوه (vip) تابوت سره چې د جسد مخ یې د ښېښې له شاه ښکارېده د ننه شول، ټول حیران شولو چې دا کوم بختور او «vip» روږدی دی چې نږدې شلو کلونو په لړ کې تر پل سوخته لاندې دا لومړی روږدی دی چې تابوت یې په برخه کېږي، زما په شمول یو شمېر له خپل ځایه پاځېدو او د ژوند غم مو غلطوه؛ ومو ویل: څومره وخت و چې نه مو وو خندلي په داسې حال کې چې یو شمېر روږدو د دې پوښتنې په ځواب کې چې څوک وفات شوي دي؟ د دعا په پار لاسونه پورته کړي وو.

د تابوت څښتن په سره سینه زموږ خواته وکتل ویې ویل: راشئ یو زدني (vip) تابوت واخلئ که یې په مستقیم ډول جنت ته بو نه تللی پیسې مو نه اخلم، داسې تابوت چې د ټرامپ د خوب تخت په څېر کړکی لري. هواداره، زدني راشه او بې خبره چې یو دانه پاتې دی، وروسته له یوې وقفې یې غږ پورته شو « دادی ښیښیي سرپوښ واله تابوت پر سر یې دعوه نه ده؟»

ټول په خندا شول تابوت یې پورته کړ او دې زاړه پله په لور روان شول؛ چیغې یې وهلې: « او ځوانه راشه داسې تابوت درکړم چې د ځنکدن په وخت کې په لومړي درد سره هرڅه ختم شي.»

وروسته یوه ساقي (شراب وېشونکي) تابوت د یو گرام هېروئینو په بدل کې د ویده کېدو له پاره واخیست.

یو بل روږدی چې سر ښوونکی به یې ورته ویل، یوه شپه د یوه پلورونکي ترڅنگ چې څو قدمه واټن یې درلود کښېناست د یوې غوړې مقدمې تر ویلو وروسته یې ورته وویل: وه وروره شیشه هېتلر کشف کړې ده رېښتیا ده؟

پلورونکي وویل: هو!

وروسته سرښوونکي وویل: هماغه کتاب چې په افغانستان کې شیشه کشف کړې ده یوازې له ماسره دی، هغه کتاب هر هغه سړی چې سواد ولري او ستا د اعتماد وړ وي ورکوم یې؛ که یې څوک ولولي کولای شي په کور کې په یوه دقیقه کې یو ټن شیشه تولید کړي.

پلورونکي د هغه لېوه په څېر چې غوښه په خوبویني ویې ویل: چېرې دی کتاب؟

ناولي سړي وویل: په کور کې دی!

په بېړه یې پینځه سوه افغانۍ له دوه گرامه هېروئینو سره ورته ورکړل او له خپل شاگرد سره یې د کتاب له پاره کورته ولېږه، شاوخوا نیم ساعت وروسته چې بېرته را وگرځېده، کتاب یې د مقدسو کتابونو په څېر په څو پوښونو کې پوښلی راوړ، ژر یې خلاص کړ، لومړی د هېتلر انځور او سور پوښ و، سر ښوونکي ورو، ورو ورته وویل: له کتاب سره جوړه د باندې ووځه په خدای که دې ونیسي وژني دې.

پلورونکی له ځایه پاځېده ناځاپي سترګې پرما ولګېدې را نږدې شو او په غوږ کې یې راته وویل: ویاند لالا! ته خو ورور یې ستا عمل هم شیشه ده. دا دی کتاب مو پیدا کړ سر له سبا څخه خپله شیشه جوړوم کله مې چې کتاب ته وکتل نو د هېټلر نبرد من کتاب و.

په داسې حال کې چې سر ښوونکي له پلورونکي نه یو څو ګرامه او څو زره نورې هم اخیستې وې، د جګړې د لومړۍ کرښې د فاتح په څېر یې ګامونه ګړندي کړل او تر پل سوخته لاندې یې د قمار بازۍ میدان ته ځان نږدې کړ.

# د دنیا پای

زه وم او یو خونړی روږدیتوب، پل سوخته و او ټوله هغه بدبختي چې زما پر بدن یې څپه خوره کړې وه، فکر مې کاوه چې د ژوند وروستي وختونه مې دي، هرڅه تر نظر تیاره او کرکه مې ترې کېده؛ له ټولو هیلو مې زړه وینځلی و، له ډېرې پراخۍ سره سره ځمکه راباندې تنګه شوې وه، احساس مې کاوه چې په پرېښودل شوې هدیره کې د قبر پرسر مرګ ته انتظار پاتې یم.

یوه له تکراري ورځو څخه چې اسمان راته لوړ، ځمکه سخته، ستوماني او خمار خپله غېږ راته پرانیستې وه، د سید هادي یو خوربېږ نیم ګرام شیشه راکړه او ویې ویل: سید هادي وویل چې دا شیشه واخله او موټر دې چې د پل سوخته سره دی کېبل کوم یې او تر هرځایه چې ته وایې بیایو یې، همدارنګه وایي چې زه نور څه نه شم کولای.

زما موټر یې په یوه بل موټر پسې بسته کړ او له پل سوخته څخه تر هوایي پله چې د افغانستان ملي بیرغونه ورباندې رېپېدل راوسته، په همدې ببګاه مې نیم ګرام ټوله شیشه وڅکوله او وروسته ویده شوم، دومره سخت ویده شوی وم چې دوه ورځې راباندې تېرې شوې وې کله چې راویښ شوم لوږې، خمار او رنځ بیا راګیر کړی وم، له سترګو څخه مې اوبه څڅېدې او دې درېدو توان مې له لاسه ورکړی و، له موټر څخه هم چېرته نه شوای تللی، بې حاله او ضعیف د موټر له څنګ سره پروت وم، په همدې بې حالۍ کې مې حالت صفر شو، حس مې کاوه چې نور مې ژوند پای مومي او وخت یې رارسېدلی دی چې له دې شوم ژوند څخه نور خلاص شم او مړ شم، په داسې حال کې چې مرګ ته تسلیم شوی وم، په همدې مهال

مې د موټر ښيښه وټکېده، سترگې مې چې پرانيستې گورم چې يوه ښکلې هزاره نجلۍ ده، په لاس کې يې دوه پاکټه ايراني کېک و هغې راته وويل: دا واخله ويې خوره، زه هره ورځ دندې ته ځم، تاهم پېژنم خبريال وې، لومړۍ او دويمه ورځ مې فکر کاوه چې مړ شوی يې مگر د شپې مې په کور کې احساس وکړ چې نه شايد ژوندی به وې، په همدې خاطر مې دا درته راوړل، دا وخوره چې په وجود کې دې يو څه انرژي پيدا شي او په خود راشې.

په دقيق ډول مې د هغې سترگو ته وکتل چې د ښکلو او کوچنيو سترگو زړه کې مې نستوه وليده چې په دې ځلانده ورځو کې په خپرونو کې ښکاره کېده، مغرور، سرلوړی، چاغ او ښکلی و؛ نه پوهېږم چې څه حس مې درلود، کله مې چې کېک او شيدې د هغې له لاس څخه واخيستل ژړا ونيولم، زړه مې ډک شو او په لوړ غږ مې چيغه وکړه هغې هم سخت وژړل، وروسته يې په خپل ژړغونې غږ وويل: مه ژاړه! تا چې وينم خپل ورور مې راپه ياد شي چې دوه کاله وړاندې په همدې پل سوځته کې مړ شو، اوس اکثره وخت داسې فکر کوم چې هغه د ډېرې لوږې له امله مړ شوی و... دا خبره يې وکړه او لاړه...

زه چې څو ژوندی يم له دې مېرمنې خوښ يم او ځان يې د احسان پوروړی بولم؛ په رېښتيا هم ځوانمرده نجلۍ وه، وخت مې نه درلود چې د انساني سلوک او ښه والي په اړه يې فکر وکړم، سترگې، غوږونه او زړه مې يوازې د خوراکي توکو خواته وو، په چټکۍ سره مې کېک او شيدې وخوړل؛ لږ انرژي مې په بدن کې پيدا شوه، تريوه حده موړ شوم، لوږه مې کمه شوه

او د ارام احساس مې وکړ، مګر د شیشې خمار او د ژور درد رېښو مې لا هم په بدن کې زګېروي کول.

هره لاره مې چې ذهن ته راتله فکر مې پرې کاوه، ناڅاپي په دې سوچ کې شوم چې د موټر بطرۍ مې واخلم، د پل سوخته بېخ ته یې یوسم او ویې پلورم، په ډېرې سختۍ سره مې له موټر څخه بطرۍ خلاصه کړه، په اوږه مې کېښوده او د پله بېخ ته مې یوړه؛ کله چې د پل سوخته لاندې ورسېدم، د سید هادي شاګردانو ولیدلم، یوه یې وویل: دغه دي ویاند صیب اوس دې غلا ته شروع وکړه، بطرۍ دې له کومه کړه؟

خبرې یې داسې تاثیر را باندې وکړ چې ګواکې زړه مې په توره پرده وپوښل شو او له دې سره مې په ډېره غوسه چیغه وکړه؛ اې بې انصافه! زه غل نه یم، د خپل موټر بطرۍ مې د خرڅلاو له پاره راوړې ده، وروسته یوه هلک د یوه ګرام شیشې په بدل کې بطرۍ له ما واخیسته...

بېرته راغلم خپل موټر ته، دا یو ګرام شیشه هم خلاصه شوه، حالت مې مخ په خرابېدو و، څلور/پینځه میاشتې کېدې چې کورته نه وم تللی، خپله مېرمن، مور، پلار او خور مې نه وو لیدلي... حالت مې ډېر خراب و سیګرېټ مې څکول او د کورنۍ د هر یوه غړي څېره مې د سترګو په وړاندې انځورېده، د مېرمنې مسکاوې او له روږدیتوب څخه وړاندې د مور خېګانونه... دا ټول زما ذهن ته راتلل. په همدې شېبه کې زما ترخنګ یو کورولا موټر ودرېده، یو کس راغی له نږدې مې ولیده چې د دهبوري / فردین دی، دا زما موټر چلوونکی و، کله یې چې ولیدم ویې ویل: زه ډېر ژر استاد ته خبر ورکوم.

دوه ساعته لا نه وو تېر شوي، چې پلار مې راورسېده، داسې احساس مې کاوه چې ډېر به راته په غوسه وي او ما به سخت تهدید کړي، ځکه پلار مې و، غرور مې یې ورمات کړی و، ځورولی مې و، د هیلو او خیالونو له اسمانونو مې د هغه لمن ځمکې ته را لنډه کړې وه، ویښتان یې سپین شوي وو، خو هغه برعکس په پوره مهربانۍ او مینې سره زه د فردین په موټر کې کښېنولم او ویې ویل: ځه لاړ شه کورته، زه به دا موټر په کوم بل موټر پسې وتړم او کورته به یې درولم...

کله چې کورته راغلم، زما په لیدو سره ټولو چیغې پیل کړې او ژړل یې... سمه ده، طبعي خبره ده چې حالت مې د افسوس وړ و، په دې ځواکمنتیا او ځوانۍ کې پر خاورو پرېوتی وم او ټول ژوند مې له لاسه ورکړی و، زما په لیدو سره به خود زما کورنۍ او دوستانو اوښکې تویولې؛ مور، خور، مېرمن مې او ټول را څخه ناهیلي شوي وو، کله چې زما مېرمنې ماته غسل را کاوه، نرۍ نرۍ اوښکې یې له سترګو راوتلې او ژړل یې، ځکه زه په یوه وچ او وحشتناک اسکلېټ باندې بدل شوی وم، پلار مې کورته راغی، شپه مې په کورکې تېره کړه؛ سبا سهار یې د جنګلک سل بستریز روغتون ته بېولم، په روغتون کې یې ماته یوه ځانګړې کوټه نیولې وه، له څلوېښتو ورځو وروسته د جنګلک له روغتون څخه رخصت شوم، موده وروسته یې زه په جنګلک روغتون کې د رضا کاره ټولنیز کار کوونکي په توګه جذب کړم، یوه موده مې بې معاشه کار وکړ، دا وخت فقر او بېوزلۍ سخت ځورولم...

یوه ورځ په میرویس میدان «کوټه سنګي» کې د کور په لور روان وم چې د کمپنۍ موټرو له تم ځای سره په ناڅاپي ډول بیا له «سید هادي» سره

مخ شوم، ویې ویل: خوښ یم چې په جنگلک کې کار کوې او پوهېږم چې معاش نه لرې.

پینځه سوه افغانۍ او یو گرام شیشه یې راکړل او ویې ویل: دغه شیشه واخله، که دې بیا هم اړتیا پیدا کېده یوازې له ماسره په اړیکه کې شه، گوره چې بیا دې پله ښخ ته لاړ نه شې! راځه چې اوس لاړ شو، لړ خبرې به وکړو.

په میرویس میدان کې یوه سرای ته لاړو، دلته ټول شته ځوانان د شیشې څکولو په حال کې وو، له کښېناستو سره سم یې ماته وویل: راځه چې له دې ځایه لاړ شو، ځکه دا ښه ځای نه دی.

بیا هماغه کوټې سنگي ته د کښمن ودانۍ مخامخ هلته یوځای لاړو، دلته دې غمي په نوم یو کس و، دا سړی بوډا و، هغه ته یې وویل: غمیه! نستوه که د شپې دلته راتله یا هم دې ورځې گوره چې مزاحمت ورته ونه کړې.

غمي وویل: «په سترگو» هغه شیشه یې چې ماته راکړې وه، راومې ایسته، له بده مرغه چې بیا بدبختۍ راگیر کړم، له دې وروسته بیا ژر خپل کورته داخل نه شوم...

تل مې یو احساس پروړاندې دربده او راته ویل یې، چې کورته مه ځه همدلته اوسه کار دې کېږي، له غمي څخه مې بېرته پل سوخته ته لار وموندە. خو دا ځل د شمس الله په نوم له یوه بل کس سره چې ډېر قوي و او ټول د «شمک» په نوم له هغه سره اشنا شوي وو، زه بیا تر پل سوخته لاندې خښ شوم او سید هادي بیا خپله پښه د باندې راوایسته، بله لاره نه

وه پاتې، یوه ورځ د شمک خواته ورغلم، ورته ومې ویل: مشره سخت خمار یم، زه هماغه خبریال یم «نستوه نادري» هیله کوم نیم گرام شیشه خو ماته راکړه؟

ویې ویل: نه یې لرم...

د نشه یي توکو پرورانديې د مبارزې د حوزو مسئولینو کله کله مواد راکول، کله چې سید هادي ولیدل چې په بشپړ ډول له پښو لوېږم، په بشپړ ډول راڅخه بېگانه شو، هغه ورځ مې هېڅکله هم له یاده نه وځي چې لس ځلې مې «سلام» ورکړ خو ځواب یې رانه کړ، په ورته وخت کې یوه شپه د کابل امینه قوماندانۍ د نشه یي توکو پرورانديې د مبارزې ځواکونه پل سوخته ته راغلي وو، د میان احمدي په نوم د کابل د نشه یي توکو پرورانديې د مبارزې له مدیر سره اشنا شوم، و مې غوښتل چې د خپل ژوند یو شمېرحقیقتونه ورته بیان کړم، خو هغه زما خبرې وانه ورېدې... په ناڅاپي توگه یې دوه همکاران راغلل او زه یې په «ځاپړو» ووهلم.

ډېره زیاته عقده مې واخیسته، په یوه څنډه کې کښېناستم او ومې ژړل؛ شپه مې په یوه خېمه کې تېره کړه چې سهار مهال د نشه یي توکو پرورانديې د مبارزې مامورینو او سرتېرو په ښکنځلو راویښ شوم.

د فنېکس روغتون د روږدو د راټولولو ټیم د روږدو د ټولولو له پاره راغلي وو، زما په گډون شاوخوا دوه سوه تنه روږدي یې راټول او فنېکس ته یې روان کړو، کله چې د فنېکس انگړ ته ورسېدو، روږدو غوښتل چې پاتې مواد هم مصرف کړي خو یوه ټولنیزکار کوونکي په غوسه د دوی د دغه کار مخنیوی وکړ، خو ما خپل غږ اوچت کړ ورته ومې ویل: ته حق نه لرې چې

له روږدو سره په دې ډول چلند وکړې، کار کوونکی رانږدې شو خو ما ووهي، په ناڅاپي توګه ګڼ شمېر روږدو په یوه غږ سره چیغې کړل چې مه وهه! د روغتون له مسؤولینو څخه یو کس راغی او له مایې وپوښتل: څه غواړې؟

ورته ومې ویل: ما ازاد کړئ.

لومړی یې ډېر تېنګار وکړ، خو لاړ نه شم، خو وروسته یوه شول چې د تګ له پاره زما پرېکړه جدي ده، په همدې خاطر یې زه ازاد کړم، هېڅ مې له یاده نه وځي چې د ټولنیزو کار کوونکو له ډلې د ښاغلي کمال ناصر په نوم پنځوس افغانی راکړې، خو خپل ځای ته ځان ورسوم، تر دهمزنګ پورې د یوه څښاک (شراب) پلورنځي له څنګ سره تېرېدم، پلورونکي ته مې وویل: ما سقوط کړی دی لږ څښاک (شراب) راکړئ.

ویې ویل: کوم ډول شراب؟

ځواب مې ورکړ: وطني شراب چې په پلاستیکي کڅوړه کې ساتل کېږي.

څښاک (شراب) یې راکړل، ورته ومې ویل: صبر دا پلاستیک بوی کړم، همدا وخت مې ژر د خلتې خوله سوری کړه، په سر مې واړوله او په یوه دمه مې ټوله خالي کړه.

پلورونکي راته وویل: « پیسې یې راکړه»

ځواب مې ورکړ: نه یې لرم!

شاید وږی به وم او یا به هم شرابو نشه کړی وم؛ په همدې حالت کې مې د منتو پلورونکي په کراچۍ چې د شراب پلورنځي مخې ته ولاړه وه سترګې

ولګېدې، د کراچۍ خواته مې ورمنډه کړل، شل افغانۍ مې په لاس کې وې، دا مې منتو پلورونکي ته ورکړې، کله یې چې لوټ ته وکتل، راته ویې ویل: په شل افغانۍ نه شې کولای چې منتو وخورې دا لږ دي.

په همدې وخت کې یو ځوان راغی، منتو پلرورونکي ته یې وویل: «منتو ورکړه»

کله چې منتو پلورونکي منتو راکړل، منتو مې په ډېره بيړه وخوړل ځکه ډېر وږی وم، د منتو له خوړو وروسته ځوان راته وویل: «زه غواړم له تاسره یوه لنډه مرکه وکړم.»

ځواب مې ورکړ: نه!

هغه وویل: تا چې ټول عمر له خلکو پوښتنې وکړې، اوس پرېږده چې خلک له تا هم څو پوښتنې وکړي.

ومې ویل: پوښتنه وکړه!

په همدې بد حالت کې چې ما درلود، هغه له ما څخه پوښتنې پیل کړې، ما د ټولو پوښتنو ځوابونه ورکړل او وروسته یې مرکه پر فیس بوک خپره کړه.

د مرکې په پای کې یې پينځه سوه افغانۍ راکړې، هغه مې واخیستې او سیخ پول سوخته ته لاړم؛ په هماغه شپه مې دوه سوه افغانۍ مصرف کړې، درې سوه افغانۍ یې راسره پاتې وې، سبا میرویس میدان ته د کاکا نبي حمام ته لاړم.

د کاکا نبي له حمام وروسته چې نوموړی یو مهربانه مشر سړی و او له ماسره یې ډېرې ښې اړیکې هم درلودې، په دهلېز کې یې اوږد وغځېدم او ویده شوم، دری ساعته وروسته کاکا نبي له خوب نه پاڅولم او ویې ویل: (نستوه جانه، ته زموږ با استعداده او پوه خبریال وې، اوس په تا باندې څه شوي دي؟ ولې هڅه نه کوې چې کورته لاړشې؟)

کاکا نبي ته مې ځواب نه درلود، په ژړا شوم، کاکا نبي هم له ماسره په ژړا شو...

زما په اړه د خلکو لید لوری بشپړ بدلون کړی و، هغه مشهور نستوه چې خپرونې یې ډېرې په زړه پورې او هیښوونکې وې او هره ورځ به په یوه نوې او توده موضوع باندې د خلکو په ژبه و، خو نن په یوه داسې روږدي باندې بدل شوی دی، چې حتا د خپل ځان له پاره ډوډۍ هم نه شي برابرولی، د دغه عجیبو فکرونو او د وجدان سختو شکنجو له امله د پل سوځته په لور روان شوم، کله چې پل سوځته ته نږدې شوم د پل سوځته سره د پولیسو رنجرې ولاړې وې، د نشه یي توکو پروړاندې د مبارزې پولیسو یوه کار کوونکي چې زه ولیدم، ویې ویل: نستوه جانه ښه شوه چې پیدا مو کړې، راشه په موټر کې کښېنه یو څوک درته انتظار دی.

گورم چې پلار مې په موټر کې راپسې راغلی و، په شرم او ټیټ سر کورته راغلم؛ د مېرمنې موبایل مې واخیست او فېسبوک مې خلاص کړ، گورم چې ډېرو خلکو زما په اړه لیکلي دي څکه چې زما ویډیو یې لیدلې وه، د خلکو په منځ کې د اشرف حق دوست په نوم یو ځوان و، هغه راته ویلي وو: زه غواړم تا د درملنې په موخه له هېواده بهر هندوستان ته بوزم، له هغه سره مې اړیکه ټینگه کړه، خبره مې یې ومنله، د ښاغلي حق دوست د دې

کار او مرستې له امله د زړه له کومې مننه کوم، خو کله چې هند ته لاړم له ډېرو بدو شرایطو سره مخ شوم، د کستوري باغ په سیمه کې يې ماته کوټه نيولې وه، د شپې په کوټه کې يوازې پاتې شوم، سهار شاوخوا نهه بجې وې چې څلور کسان زما کوټې ته راغلل، چې په دوی کې يو ځوان ډېر غښتلی او تکړه و، دې ځوان زه په ډېر قوت سره له خپل ځای څخه پورته کړم، پوښتنه مې ترې وکړه چې تاسو څوک یاست؟ چا ځواب نه راکاوه... يوازې يې ویل چې (CFD).

ما چیغه وکړه: حق دوست، پلاره... حق دوست، پلاره... اما هغوی زما پرمخ توره کڅوړه را کش کړه او په يوه موټر کې يې زه له ځان سره یوړم، څه کم یو ساعت د ډهلي له مرکز څخه لرې په يوه سیمه کې موټر تم شو، زما له سر څخه يې توره کڅوړه لرې کړه، ګورم چې دلته يوه حويلی ده، ښځې ډېر سپي دلته موجود دي او د کوټو کړکۍ د زندان کړکیوته ورته اوسپنو په وسیله بندې شوې دي.

زما له پاره ډېره سخته تمامېده، کله مې چې څېړنه وکړه متوجې شوم په کوم ځای کې چې زه بستري یم، دا دې ابېدز ناروغانو د ساتنې کمپ دی، د دې کمپ داخل نهه نوي سلنه زندان ته ورته والی درلود، وروسته له هغه چې دوی په وهلو او ډبولو دلته راوړم، نور مې تر دريو مياشتو پورې د چا نوم هم وا نه خیست او دروازه هم چا راخلاصه نه کړه؛ يوازې دال او سپين پاستې مې خوراک و، دې خوړو زه په سخت قبض اخته کړم، دلته د ازادۍ هېڅ څرک نه تر سترګو کېده...

په ورته وخت کې په افغانستان کې اوازه خپره شوې وه، چې نستوه په هند کې د روږدیتوب د پرېښودو له امله اوس کاملاً جوړ او ښه تندرسته

شوی دی، چې ډېر ژر به بېرته خپل هېواد ته راوګرځي؛ یوې افغانۍ کورنۍ د عزیز په نوم خپل زوی دلته د بستري کېدو له پاره راوستلی و، د عزیز حالت مې چې ولیده، زه سخت ودردېدم، ځکه پوهېدم چې دا ځای د هغه له پاره ډېرګوابنوونکی دی، نو په همدې خاطر مې زړه پرې سوځېده.

یوه ورځ یې د ړیرې پل واخیست او خپل شریان یې پرې کړ؛ د دې کار په جزا کې د دې مرکز مسؤلینو تصمیم ونیوه چې نوموړی جبرً بل مرکز ته بوځي. ما نه شوی کولای چې غلی پاتې شم، له مسؤلینو مې د خیر، ښېګڼې او مهربانۍ غوښتنه وکړه، هغوی وویل سمه ده، د شپې لخوا یې یو ډول درمل راکړل چې یوه اونۍ مې یې خوله را کړه کړه، خبرې مې نه شوې کولای او عزیز یې په دې ټولو سربېره بیا هم له ځان سره یووړ... څو اونۍ وروسته یې بېرته راوست او همدلته یې بستر کړ.

د عزیز ټول وجود په بشپړ ډول شړېدلی و، ده ماته خپله کیسه وکړه: «داسې یوه ځای ته یې زه بېولی وم چې د ځان وینځلو له پاره یې یو تشناب هم نه درلود، د سړښت او یخ په موخه یې یوه باد پکه راته چالانه کړې وه، داسې احساس مې کاوه چې په یخچال کې پروت یم.»

په هند کې د درملنې دوره، زما د ژوند تر ټولو دردمنه او سخته دوره وه؛ زما زړه و، چې څلور ژوندۍ خپرونې جوړې او خپرې کړم، د دې خپرونو په لړ کې له ښاغلي حق دوست څخه منته وکړم او د دې ترڅنګ ورته ووایم چې دا دې څنګه ځای ته راوستلم او څه راسره کېږي؟ مګر زه د دوه تېرو په مینځ د کوچنې کېدو/ اوبه کېدو په حال کې وم، یوې خواته مې فکر کاوه چې حق دوست صیب خو له ما سره د یوه ښه نیت پر بنسټ مرسته کړې ده، خو بلې خواته دلته داسې څه راسره کېدل، چې د انسانیت له

چوکاټه بهر وو...لومړی خبره دا وه چې داسې فکر کېده چې زه دې نړۍ په کچه د روږدو کسانو یوه غوره روغتون ته بېول شوی یم، په داسې حال کې چې دا ځای له زندان څخه هم بدتر و او هېڅ ډول امکانات یې نه درلودل، ما به چې کله ځینو ملګرو ته د جنګلک او د فنېکس د روغتونونو کیسې کولې، دوی به داسې احساس کاوه چې ګواکې دا خو ښځې جنت ته ورته روغتونونه وو.

دغه کار د ښاغلي حق دوست له پاره یو ښه بستر جوړ کړ، یوه رتبه ترفع یې وکړه او وروسته د نیمروز ولایت د امنیت مدیر شو، خو بیا هم هغه له ما څخه دا هیله درلوده چې په هر لایف خپرونه کې له حق دوست څخه ځان پوروړی اعلان کړم، بل اړخ ته له دې څخه وېرېدم چې څنګه کولای شم دا ټول درد چې ما په هند کې تېر کړی دی بیان کړم او که زه دا کار وکړم امکان لري حق دوست او نور خلک باور ونه کړي، ځکه دلته دا خبره مشهوره ده چې هند پرمختللی ملک دی او روغتیایي برخه خو یې ښځې ډېره معیاري او له نعمتونو ډکه ده، خو د الله شکر ادا کوم چې په همدې وخت کې عزیز چې له ماسره په هند کې په یوه روغتون کې بستر و، راپیدا شو، ښه خبره دا وه چې هغه اوس شکر له روږدیتوب څخه روغ شوی و او دا هغه څوک و چې په هندي روغتون کې د هرڅه شاهد و.

په «لاچپت نګر» کې ښاغلي دوست تېنګار کاوه چې فلم څه ډول پای ته ورسوم، په پای کې له خپل ځایه پورته شوم، چیغه مې وکړه! اې خلکو! اې افغانانو! ښاغلی حق دوست دری میاشتې کېږي چې زه یې د زندان په څېر په داسې یوه ځای کې ساتلی یم، هغه لا هم وایي چې فلم باید په یوه ښه او غوره بڼه پای ته ورسوم، د دې پرځای چې زه ووایم چې زه په ډېر

بد حالت کې تداوي شوم، باید ووایم چې د ډېرو ښو امکاناتو په موجودیت او په ډېر ښکلي محیط کې تداوي شوم.

وروسته له دې چې له « لنډ مهالې نشې ځخه ووتم» د حق دوست د خپلوانو له ډلې ځخه یو کس و، چې ترجمان و او د دې دندې په بدل کې یې زر ډالره معاش اخیسته، زه یې هغه ته وروستلم څو خپلې پیسې بېرته ترې واخلم، ښاغلی عزیز هم شاهد و، هغه هم له هغه کس څخه بېرته زر ډالر واخیستل، په یو ترجمان باندې زر ډالر درلودل زه یې هغه ته وروستلم څو پیسې بېرته ترې واخلم، ښاغلی عزیز هم شاهد دی چې سیټي واک ته ولاړو او خپل زر ډالر یې له هغه سړي واخیستل وېره یې درلوده چې زه یې په اړه فېس بوک کې څه ونه لیکم.

په دغسې حالت کې زه بېرته کابل ته راغلم، زه ډېر خپه وم او عقدې اخیستی وم، کله چې ما په ویډیو کې خبرې وکړې، د پل سوخته په اړه یې زما د روږدیتوب اړوند کومه ویډیو چې خپره کړې وه، هغه یې هم له منځه وړې وه، ما پخپله پانه په یوه ژوندۍ خپرونه کې د کابل د نشه یي توکو پروړاندې د مبارزې مدیر ښاغلي میان احمدي په اړه په دې خاطر چې دوه همکارانو یې زه وهلی او ډبولی وم خبرې وکړې، مگر ښاغلی لمر خلیل د نشه یي توکو پروړاندې د مبارزې قوماندانۍ د کشف مدیر چې زما ډېر ځوانمرده ملگری و له ماسره یې اړیکه ونیوله او ویې ویل: ښاغلي میان احمدي خپله غوښتنه کړې ده چې راشه د پل سوخته انځورونه واخله او ویې گوره چې څه ډول دي، کله چې پل سوخته ته لاړم، ښاغلی میان احمدي په یو لنډکروزر موټر کې ناست و، راته ویې ویل: زه سخت انتقاد منونکی یم، تا زما په اړه ویلي و چې د مافیا په ترویج کې زه هم لاس لرم،

نن وګوره چې د لومړي ځل له پاره زما د مدیریت په دوره کې دغه پل پاک کېږي، وروسته له هغه چې د مخدره توکو پروړاندې مبارزه کې ما د ښاغلي میان احمد احمدي پروګرامونه وکتل، هغه وخت مې د هغه رښتینې څېره وپېژندله.

هغه په ډېره چټکۍ او کم وخت کې پل سوخته او د علي مردان باغ له روږدو تش او پاک کړی و؛ خو د ده د دغه نېک اقدام او غوره فعالیت په خاطر دی د یوې دسیسې ښکار ګرځېدلی و، د کابل نشه یي توکو پرضد د مدیریت له دندې یې لرې کړی و او زندان ته یې اچولی و.

د شمس زماني په نوم بل لوی مواد پلورونکی د میان احمد احمدي د سرتېرو لخوا ونیول شو، هغه په خپلو څرګندونو کې د دې په موخه چې ګواکې له ښاغلي میان احمدي څخه یې خپل غچ اخیستی وي، لیکلي وو چې میان احمد احمدي له هغه سره همکار و، په همدې چل ښاغلی احمدي ونیول شو او له نیولو یې پینځه میاشتې وروسته د کورنیو چارو وزارت اعلان کوي چې موږ میان احمدي په همدې غلا کې نیولی دی، میان احمد احمدي په اووه لس کاله بند محکوموي او ښاغلی لمر خلیل هم په اتو کالو بند، ځکه د ښاغلي لمر د بندي کېدو په پار هېڅ ډول قانع کوونکی دلیل نه و موجود.

محاکم ښاغلی لمر خلیل ازادوي، چې له ازادېدو وروسته یې خپل کورته نږدې د مافیا لخوا په شهادت رسېږي او د میان احمد احمدي په زنداني کولو سره پل سوخته تر پخوا څخه لا قوي پرانیستل کېږي او پایښت پیدا کوي، د علي مردان باغ چې د ښاغلي میان احمدي په وخت کې له اوسېدونکو خالي شوی و، خو نن له بده مرغه په کابل کې د نشه یي توکو

تر ټولو لوی او ګڼې ګوڼې په بازار باندې بدل شوی دی؛ پوښتنه داده که چېرې ښاغلي میان احمدي فاسد شخص و، د خپل فعالیت پرمهال یې پل سوخته او د علي مردان باغ وتړل او هغه خلک چې نن ځانونه ژمن ښیي، د فعالیت پرمهال یې څه ډول دغه دوه لوی او با نفوذه ځایونه په کابل کې د نشه یي توکو پر ځواکمنو ځایونو بدل شوي دي؟!

د هند تر درملنې وروسته زما د روږدیتوب شدت ځواکمن شو او عقده مې لا غښتلې شوه؛ د جنرال اندرابي زوی ښاغلي میهن مومن د هند له درملنې وروسته د خدمات ملت په نوم په خپل شرکت کې د دریو میاشتو له پاره ماته یو کار برابر کړ چې په دې موده کې مې وکولای شوی څو د جنرال مومن د ژوند او مبارزو مستند فلم جوړ کړم، په هغه ځای کې زما د کار له پای ته رسېدو وروسته ډېرې بېکارۍ یوځل بیا هماغه انسان خوړونکي ښامار پل سوخته ته وګرځولم، د دریم ځل له پاره روږدی شوم، دا ځل مې پلار د ډګروال میر امان الله ظافر په همکارۍ د پولیسو درې سوه بستریز روغتون ته بوتلم او هلته یې د روږدو کسانو په څانګه کې بستر کړم، مګر له هغه ځای څخه تر وتلو وروسته مې بېرته اعتیاد روږدیتوب ته مخه کړه، پلار مې بیا هم غلی پاتې نه شو، دا ځل یې زه د دارلامان خلوېښت بستریز روغتون کې بستر کړم، هلته مې د کتاب د لیکلو په پار په ذهن کې لومړنۍ خبرې راژوندۍ کړې.

# د تیارې بل اړخ

ډېر ډنگر و، مگر ښکلا یې حیرانوونکې وه، شاوخوا اتلس کاله عمر یې درلود، په دولس کلنی کې یې روږدیتوب ته مخه کړې وه، د ژوند داستان یې د تراژیدیو او غمونو څخه ډک دی، چې په یاد راوړلو سره یې د انسان د بدن ویښتان پورته کېږي، په څلورویشتو ساعتونو کې اته ځلې عصبي حمله پرې راغلې ده، «همونیا» «فید» «الکترولید» یا «مېرگي» په هرځل حملې سره یې د پوزې له سوریو څخه د وینې سېلاب جاري کېده، حس مې کاوه چې ممکن هره شېبه یې عزرائیل ساه واخلي مگر د هغه وضعیت او ژوند ته حتا عزرائیل علیه سلام هم خپه کېده، البته دا زما خپل فکر او مهرباني ده، په دې ډول هغه یې د ژوند اخیستو څخه لاس په سر کېده.

څنگه کولای شم چې هغه سختې، سرې او د زړه تنگون ورځې هېرې کړم!؟ هغه ورځې چې د معتادینو د درملنې څلوېښت بستریز روغتون د زهرو د له منځه وړلو څانگه کې بستري وم، لوړه، د روږدو وهل او ډبول؛ د روږدو ځورېدل او عذاب، تر ټولو دردوونکې، غمجننې، ترخې او خړې ورځې، دا هغه شېبې دي چې زما په زړه کې د هغه انځور په څېر چې د پولادي مېخونو په واسطه په تېږه کې حک شوې وي. د هغه ښکلې اتلس کلن هلک مرگ او ساه ورکول چې زما مخامخ مېز کې بستري و په وجود خاطراتو کې مې حک شوي دي، هغه زموږ د سترگو پروړاندې ساه ورکوله او موږ یوازې ورته کتل.

ډېر ښکلی و، تردې حده ښکلی و، چې زه یې د قلم په واسطه کلمو کې ښکلا نه شم انځورولی، سترگو یې یوه ځانگړې ښکلا درلوده، چې د هغه د څېرې ښکلې برخه یې جوړه کړې وه، هغه شاید د عدسیې په واسطه

ترټولو ناوړه پېښې لکه: د موادو پلورونکو د نفساني غوښتنو، د شاوخوا زيان رسوونکو او په انتظار پاتې مور د ستومانه بڼو...

توره شپه د روغتون له کوچنۍ کړکۍ څخه خوره وه، د ناروغانو زګېروي او دردونه هغه غږ و چې زموږ د ارامه کوټې وضعيت يې ناارامه کاوه، د روښانه څيراغ په روښانه سيوري کې مې ورته کتل چې سترګې يې د کوټې چت خواته ژورې پاتې وې، خپل دردونه او غمونه يې يوازې د کوټې له چت سره تېرول.

د وجود په داخل کې يې سرې، سختې او تورې ورځې د سيګرېټ د دود په څېر ګرځېدې او حسابولې يې، هغه په خپل خام خيال او فکر سره ناځوانه کسان تر ټولو ځوانمرده ګڼل او هغه کسان چې د انسانانو وينې يې تويولې هغوی يې ژغورونکي بلل. خپل غمجن او دردونکی ژوند مې يوې خواته او زما مخامخ تخت کې د تراژيدۍ ننداره هغه څه وو، چې هره شېبه مې د سترګو پروړاندې انځورېده.

دې کړاوونو او تراژيديو به لاسونه سره يو کړل او زه به يې د وحشتناکو او وېرونکو خوبونو نړۍ ته بېولم، شپه په خپله ټوله تاريکۍ سره چې لري يې، د سهار د روښنايۍ پروړاندې تياره نه شوه خورولی او د دې پيغام په اساس چې په هرې تيارې پسې رڼا شته او هره تياره خپل ځای روڼ سهار ته ورکوي.

مور د پاکولو (سم زدايي) يا (Detox) بېړنۍ کوټه کې بستر و، سهار معالجو ډاکترانو زموږ له کوټې څخه د ناروغانو ارزونه پيلوله، په معالجوي برخه کې دوه - درې محدود ډاکتران وو، نوی يو ډاکتر چې د غرور لوړو ته

رسېدلی و، تازه د روغتون د معالجوي څانګې مسؤل ټاکل شوی و، کله چې زموږ کوټې ته راته، فکر به دې کاوه چې ابوعلي سینا کوټې ته را ننه کېږي، په ډېر غرور سره یې روغتیا پالنه کوله او په داسې حال کې چې تمثیلي غوسه کېدل یې هم زده و نو د ناروغانو په اسنادو کې به یې هرڅه له خپل زړه لیکل.

دغه سهار ډنګر هلک اته عصبي حملې تېرې کړې وې، د خبرو کولو توان او انرژي یې نه درلوده او د ډاکتر په تمه و، په پای کې داسې حالت ته ورسېده چې لږ همکاری ته یې هم اړتیا درلوده، ځکه ببخي له ټېکه غورځېدلی و، خو له بده مرغه چې هېڅچا پام نه ورته کاوه، ما د ارزونې پرمهال هغه ځوان او مغرور ډاکتر ته وویل: ښاغلی ډاکتر! موږ له پرون سهار راهیسې تر اوسه پورې په دغه ځوان باندې د اتو عصبي حملو شاهدان وو، چې پوزې څخه یې وینې هم بهېدې، په ناڅاپي توګه یې د ځوان خواته ورپام شو، د پوښتنو او ځوابونو د ترلاسه کولو په پای کې چې کله ډاکتران د ده له حالت څخه خبر شول، په وېره کې شول، داسې ونه شي چې هغه د دوی تر کنټرول لاندې په روغتون کې ومري، د هغوی زړه و چې په کم وخت کې ډېر ژر او د همدغه حالت په بهانه کولو سره هغه میوند روغتون ته ولېږي.

ډاکتر له هلک وپوښتل: پایواز دې څوک دی؟

هلک ځواب ورکړ: ورور مې دی.

ډاکتر وویل: ورور دې څه کار کوي؟

هلک ځواب ورکړ: روږدی و، نوی روغ شوی دی او بې کاره دی.

ډاکتر خپل یوه همکار ته ځیر شو او ویې ویل: پایواز یې باید راشي او دغه هلک دې میوند روغتون ته بوځي او یا دې څو دانې ویټامین (k) امپول راوړي چې ورته تطبیق یې کړو.

د هلک سترګې له اوښکو ډکې شوې وې، پرسپین بې وینې مخ او شونډو یې اوښکې راروانې وې.

ډاکتر وپوښتل: ولې ژاړې؟

هلک ځواب ورکړ: ډاکتر صیب! کومه ورځ یې چې زه دلته راوستلم او بستر یې کړم، ورور مې زموږ له ګاونډي څخه زر افغانۍ پور واخیستې او زه یې دلته راوستم، فکر نه کوم چې د پیسو د نه موجودیت له امله هغه دلته راشي.

له خواشینۍ نه مې زړه ډک و په مخ او شونډو مې اوښکې روانې وې د هلک د ژړا له امله رامنځته شوې چوپتیا د ډاکټر د پوښتنو غږ ماته کړه: «پلار دې چېرته دی؟»

د هلک ستونی ډېر نیول شوی او درد یې درلود، ژړا د خبرو کولو مجال نه ورکاوه، په ژړا او دردمن حالت کې یې ډاکتر ته ځواب ورکړ: «پلار مې عملي دی، پلار مې روږدی دی!»

د هغه په دې خبرو سره په کوټه کې مطلقه چوپتیا رامنځته شوه. مګر هغه ناوړه درد او ژړا چې زما ستونی یې نیولی و له منځه لاړ، هغه ناولې پرستن چې شاید له ما څخه د مخه هم سلګونو روږدو خپل ژوند په کې تېر کړی و، په خپل سر مې راکش کړه او ومې ژړل هغه ژړا چې غږ یې نه

درلود، خو په ډېر جوش او شدت سره زما له سترګو اوښکې بهېدې او د هلک د مظلومیت په لویوالي کې مې فکر کاوه.

نه پوهېږم چې دغه وضعیت ولې زما د راتلونکي په اړه ډېر دردناک او تور انځور زما په ذهن کې جوړ کړی و، زه یې د خپل ژوند راتلونکي ته بېولم، چې له نن څخه وړاندې څو کلونه تېر شوي دي، جوړ او غښتلی زوی یې د ناروغۍ په بستر پروت دی، فقر او بېوزلي د هغه د بدن بند بند ځوروي؛ د ډاکتر د پوښتنې پروړاندې چې په خورا کبر سره ورته وایي: چې پلار دې څه کار کوي؟ هغه په رېږدېدونکي او مات شوي غږ ځواب ورکوي او ورته وایي: «چې پلارمې روږدی (متعاد) دی، پلار مې عملي دی...»

زړه مې کېده تر خپلې بد بویه او خیرنې برستنې لاندې چیغې وکړم، زړه مې کېده چې له خپل ځایه جګ شم او د کوټې شیشې ماتې کړم او وروسته د خپلو لاسو رګونه ورباندې غوڅ کړم، زړه مې کېده له روغتون څخه وتښتم او د قرغي په بند کې ځان ډوب کړم، ښه مې په یاد دي چې یو ملګری مې درلود او په ډېر عاجزه (فقیرانه) توګه یې راته ویلي و: «نارینه د خپل وجود په داخل کې ژاړي، د نارینه په سترګو کې باید اوښکې ونه لیدل شي، که د وجود په داخل کې ژاړي یا هم کوم غم ولري، بیا یې هم په شونډو مسکا خوره وي او یو نارینه باید اوسپنیز خاصیت ولري.»

ډاکترانو په خپل مینځ کې وویل: څه وکړو؟ هماغه ډاکتر چې ډېر متکبر او سخت زړی و وویل: هېڅ، پایواز ته یې خبر ورکړئ چې د عصبي ناروغۍ د درملنې له پاره راشي او بو یې ځي، موږ نه شو کولای چې مسئولیت یې واخلو، که په همدې روغتون کې ومري ځواب به یې څوک ورکوي...؟

هلک جسمًا ډېر کمزوری و، په ډېره سختۍ یې له خپل بستر ځای ځخه راپورته شو، ده له ډاکترانو د مهربانۍ او ترحم هیله درلوده، ورته ویې ویل: ګرانو ډاکتر صیبانو! هیله کوم، زما کورنۍ مه خبروئ، زه خپله رغېږم، که چېرې نورو روغتونونو ته د بېولو اړتیا وي او هغه امپولونه چې تاسو یاد کړل، ورور مې مجبوره کېږي چې راشي او داخل زه یقین لرم چې ځوک قرض نه ورکوي. په همدې اساس دری میاشتې کېږي چې ورور مې پاک او روغ شوی دی، خو الله دې نه کړي، داسې نه شي چې بیا نشو ته مخه کړي او مخکیني حالت ته وګرځي.

ډاکتر وویل: ستونزه نه شته، پلار دې را غواړو.

هلک په لوړ غږ وویل: ډاکتر صیب، پلار مې هغه شپه چې دلته یې زه راوستم او بستر شوم، ده هغه وخت هغه ګیلمچه چې مور مې د روماتېزم له امله پرې ویده کېده، له کور ځخه یې پټه کړه او د موادو په بدل کې یې وپلورله، هغه څنګه کولای شي چې راشي.؟

په ناځاپي توګه یوه وېروونکي فکر د خپل ژوند راتلونکو شپېتو کلونو ته بوتلم او ومې ویل: شپېته کاله وروسته زما په کور کې یوه ټوټه ده، چې د روماتېزم ناروغۍ په خاطر مې مېرمن وربانده ویده کېږي، خو زه دومره بې غیرته کېږم چې هغه ټوټه له خپل کور ځخه پټوم، د مېرمنې د ناروغۍ خیال نه ساتم، هغه په لږو پیسو پلورم او ځان ته نشه یي توکې وربانده اخلم؟ ننګ راګیر کړم، له ځان سره مې وویل: چې نه! نه! زه هېڅ وخت داسې بې غیرتي نه کوم، که مې اتلس کلن زوی ته یو شی ورکولای نه شم، نو ولې یو شی ترې واخلم او پټ یې کړم؟ نه غیرت، نه عزت او نه هم د یوه پلار له برم او عزمته ډک غرور...

کله مې چې جسمي او فکري حالت عادي حالت ته راوګرځېده، څلورو خوا ووته مې وکتل، ومې لیدل چې ټول ناروغان د ډاکترانو په شمول همغه ځوان ته متوجې دي او حیران حیران ورته ګوري.

د یوه ډاکتر غږ راتله، چې ویل یې: ته ارامه ویده شه، موږ یو کار کوو، مګر ته هم یوه ژمنه او قول موږ ته راکړه، وروسته له دې چې هغه فکرونه او خیالات تا اندېښمن او غمجن کوي هېڅکله پام مه ورته کوه او مه ورته تسلیمېږه. د کوټې له ملګرو سره دې خبرې وکړه، وخانده څو په دې ډول فشار درباندې کم شي.

په داسې حال کې چې د شونډو پرخنده یې ملیحه مسکا خوره وه، ویې ویل: په سترګو ډاکتر صیب، بېرته په خپل بسترکې پرېوت او اوږد وغځېده؛ ډاکتران زموږ له کوټې څخه ووتل او هلک یوځل بیا د خپل ژوند په هماغه غیر هندسي او غمجنه زاویه چې دا د ټولو بدبختیو پای دی د خپلو ښکلو سترګو په ګاټو کې بدرګه کاوه.

یادې ناروغۍ نوموړی لکه له پېړیو راهیسې د طاعوني کاروان د استبداد په څېر ځپلی دی او د جذام کورونو په څېر د غمجنې ناکامۍ زرګونه سره سندونه په لاس کې لري، په څېره کې یې د روږدیتوب نږدې د دوه لسیزو ژوند اخیستونکې، سوځوونکې، ستړې کسیې، غمجن او سوړ حالت کولای شو، پاڼه په پاڼه ولولو.

کله به مې چې د هغه غمجنې او خپه څېرې ته کتل، حس مې کاوه چې زما بدن، فکر او جوړښت لکه د یوه عصري انقلاب د رامنځته کېدو په څېر مات شوی دی، هغه انقلاب چې زما پينځه کاله روږدیتوب (اعتیاد) ته یې

د پای ټکی کېښود. پر بدن مې د ځواک یوه قوي څپه خوره شوه او دې پایلې ته رسېدلی وم چې هو! نور روږدیتوب (اعتیاد) بس دی. زه باید په راتلونکي کې لکه تخریبوونکې سرطاني غده هره شېبه خپل ماشومان د شمعې په څېر ونه سوځوم. که څه نه شم ورکولای نو له دوی خو باید څه وا نه خلم.

په پښو ودرېدم، په داسې حال کې چې د کوټې ټول ملګري مې په خپلو ځایونو کې ویده وو، د خپل خوب د تخت ترخنګ ولاړ وم، د مېز روک مې خلاص کړ کوچنی کتابچه مې چې لږ پاڼې یې لرلې او په منځ کې یې یو قلم ایښی و، دې کتابچې د یوه کس له پاره د انتظار شېبې تېرولې، چې د خپل ژوند خو کرښې د هغه پر سپینو پاڼو باندې ولیکي، د یوازې توب احساس مې درلود، بیا مې هم فکر کاوه، چې زما د ژوند او کتابچې ترمنځ یوه اړیکه شته، د لیکلو پیل مې د خپل روږدي ځان پروړاندې د یوه نوي انقلاب پیل و، هو! زما په ژوند کې ستري ارزښتناکې شېبې هغه جادویي کلمې وې، چې د درملنې پړاو مې په پوره قوت سره تېر کړ او په همدې توګه لا ځواکمن شوم...

قلم او کتابچه مې راواخیستل، لاړم د خوړنتون پرمېز باندې کښېناستم او خپل ځان ته مې وکتل، اوس د یوې سترې پرېکړې ځواک زما په وجود کې پیدا شوی و او دې ته یې اړ کولم څو د ژوند په اړه فکر وکړم، هغه څه چې تراوسه مې په ذهن کې هېڅ نه و تېر شوي، ما باید د اووه کاله ژوند لوړې او ژورې چې د روږدیتوب (اعتیاد) له امله رامنځته شوې وې د پاڼو پرمخ باید لیکلې وی، خو په هر صورت دا وخت ځواکمن شوی وم، قلم او

کتابچې له ځمکې څخه اسمان ته د هغه وخت په څېر چې کله روږدی نه وم د الوتلو وزرې غوړولې وې.

هو ما د بریا په پایله کې په خپل بې شعوره ضمیر کې یو جدي ماموریت حک کړی و، همدغه ځای د دارالامان ځلوښت بستریز د روږدو د درملنې روغتون د خوړنتون د مېز پرسر مې چې کله خپل قلم کېښود، په نا څاپي توګه مې دغه جمله «پل سوخته» «اخر دنیا» ولیکله، هو! پل سوخته د دې دیار د سوځېدلو وروستی ځای دی، چې هر وګړی له ځان سره د درنو کڅوړو او بارونو په څېر سوځېدلې (تیاره) او درانه داستانونه لري.

د خوښی ستره څپه مې پر ټول بدن خوره شوه، نور مې د کتاب نوم پرېښی و، کوم چې د وېروونکي ژوند کیسه بیانوي، چې ځینې خلک یې شاید لوستلو ته هم زړه ښه نه کړي. وروسته مې ځان مکلف وګاڼه چې د اووه کلونو تیارو مستند فلم د پل سوخته اخر دنیا کتاب له لارې وړاندې کړم، څو یې نړیوال واوري، چې روږدیتوب څومره تیاره، غمجن، د لوړو او ژورو ډک ژوند دی.

زه باور لرم چې د دې څنډې په پای کې به دغه کتاب زما د غمجن ژوند د پای او یو ښه ژوند د بیا پیل سبب وګرځي. د «پائلوکویلو» په «کیمیاګر» کتاب کې مې لوستي و، که چېرته تاسو وغواړی، چې له ځانه ښه، اغېزمن او تلپاتې کار وښیی یا یې په میراث پرېږدی، له تاسو سره یوځای ټول طبیعت او کائنات لاس سره ورکوي څو تاسو خپل ټاکل شوي هدف ورسېږی.

د دارلامان د روږدو کسانو ځلوښت بستریز روغتون څخه د وتلو پرمهال په دې خوښ وم چې خپلې کورنۍ ته حداقل له یوې ګټورې لاسته راوړنې سره ورګرځم او دوام ورکوم؛ خو د خواشینۍ خبره دا وه چې له دارلامان روغتون څخه تر رخصت کېدو وروسته سربېره پردې چې ومې نه شوی کولای نشه یي توکي پرېږدم بلکې بلکې څو ورځې وروسته په چټکۍ سره زما مصرف او نشې له پراخه شوې. نور زما او زما د بچیانو داستان د هغه هلک داستان ته ورته شو، چې په روغتون کې پروت و او ما په یې خاطر څو ځلې سخت وژړل، نور زه او زما بچیان له ښې راتلونکې څخه محروم شول او ټوله کورنۍ مې په بشپړ ډول د غمونو بدمرغه ډنډ ته وغورځېده؛ یوځل بیا مې روږدیتوب ته پناه یوړه، دې ماتې زه د تیارو تل ورسولم، اوس مې هره شېبه مرګ په خپلو سترګو لیده، څو څو ځلې مې مرګ تجربه کړ، خو بیا هم د خپل رب په مهربانۍ او ملتیا ژوندی پاتې شوم.

په دې زوال سره مې هرڅه له لاسه ورکړل، د کورنۍ باور، د ژوند موقف او هرڅه.. خو! یو څه مې له لاسه ور نه کړل، د بریالیتوب له پاره مې په هیله باندې ایمان درلود، د هرې شپې پای ګردجن او تیاره وي، خو بیا هم که شپه هر څومره اوږده شي بالاخره سهار کېږي او روښنایي راځي؛ تیاره چې هرڅومره اوږده شي کله چې د هیلې او اُمید کرکۍ پرانیستل شي نور امکان نه لري چې تیاره دې دوام ومومي او انسان دې نابود کړي، د هیلې یوه کوچنۍ اندازه دومره قوي او ځلانده ده لکه دې لسګونه خونړیو کلونو ستونزې.

د دارلامان ځلوېښت بستریز روغتون څخه وروسته مې پلار د یوه صدیق او ځوانمرده پلار په څېر خپلې ټولې هڅې او کوښښونه ترسره کړل. خو پایله یې ترلاسه نه کړه او ما په یو ډول ځان د روزګار پېښو ته تسلیم کړ.

تر پل سوخته لاندې ژوند ورځ تربلې ګواښوونکی کېده، تردې پله لاندې د ناځوانۍ کلتور په لویه کچه د انسان وژونکې څپې په څېر خپور وه. د انسانیت او ملګرتیا پر بنسټ ژمن او صادق انسان هلته په ډېرې سختۍ پیدا کېده، ټولو یو بل ته فرېب ورکاوه، هر چا خپل جرم دې بل پرغاړه وراچاوه او په مجموع کې د هرچا دنده دا وه، چې یو او بل ووژني او یا یې عزت له خاورو سره خاورې کړي.

پل سوخته کې مې د آته د زوی په نوم یو ملګری درلود، صادق، ژمن او ځوانمرده انسان و، چې له ښار څخه به یې بوتل راټولول او پلورل یې؛ دا کس په ملګرۍ کې له ځانګړي صداقت او مېړانې څخه برخمن و، له ما سره یې په خېمه کې یوځای ژوند کاوه، له ډاره ډکو او وحشتناکو ورځو مور ته زیان ورساوه، دواړه په ډېره خطرناکه ناروغۍ اخته شوو، دا داسې ناوړه ناروغي وه چې د ناستې ولاړې توان یې له مور څخه اخیستی و، یوه ورځ مې وکولای شول چې تر پل سوخته لاندې د یوه مواد پلورونکي موبایل د شلو دقیقو له پاره ترې واخلم، ځو خپل فېسبوک په کې خلاص کړم او د قوماندان جاوېد نادري په نوم له خپل کاکا سره اړیکه ونیسم او ورته ووایم چې وضیت مې ډېر خراب دی لږ پیسې راته ولېږه، همداسې مې وکړل، له کاکا سره مې اړیکه ټینګه شوه، د پیسو غوښتنه مې ترې وکړه، ده راته وویل: تر سبا یې درلېږم، د همدغه ورځې په مازیګر مې یو بل موبایل پیدا کړ، چې د حوالې شمېره یې راولېږله، هغه شپه د سختې لوږې او خمار له

لاسه زما او د «آته» د زوی وضعیت ډېر خراب شو، سهار څلور بجې د یوه ملګري خواته ورغلم ورته ومې ویل: د یو ګرام شیشې لسمه برخه او د یو ګرام هېروئینو لسمه برخه راته راکړه، زه وروسته په پیسو پسې ځم چې راغلم پیسې دې درکوم.

خبره مې یې ومنله، په خپله مې د شیشیې یوه دانه راوایسته، د درملو یو سیخ هېروئین مې د آته زوی ته ورکړل، هغه وایستل او وروسته یې وویل: ته لاړشه زه بیده کېږم او ما هم په بېړه حرکت وکړ.

سهار پینځه بجې مې له پل سوخته څخه پلی د سرای شمالي په لور یوې صرافۍ ته حرکت وکړ، شاوخوا اووه نیمې بجې سرای شمالي ته ورسېدم، نهه بجې صرافي خلاصه شوه او پیسې مې واخیستې، غوښتل مې چې پل سوخته ته په ټکسي کې لاړ شم خو هېڅ ټکسي چلوونکي دې ته زړه ښه نه کړ چې ما خپل ځای ته ورسوي، همدا یوه خبره یې کوله: چې موږ پوډریان نه بیایو، مجبور شوم چې له سرای شمالي څخه د پل سوخته په لوري پلی (په پښو) روان شم، که په لیني موټرو کې هم تللی وی، نورو خلکو به اعتراض کاوه چې پوډري دې ولې موټر ته پورته کړی دی، غرمه مهال پل سوخته ته ورسېدم، وروسته مې د دواخانې له ګولایي څخه چپلي کباب واخیست او پل سوخته ته ښکته شوم، یو ګرام هېروئین مې د آته زوی ته واخیستل او یو ګرام شیشه مې د ځان له پاره واخیسته، په کومه خېمه کې چې موږ ژوند کاوه، دلته اوس څو کسان راټول شوي وو، پوښتنه مې وکړه: څه خبره ده؟ ځواب یې راکړ: ملګری دې مړ شوی دی...

زنه يې پرې ترلې وه او په پل سوخته کې مې خپل يواځينى رېښتينى ملګرى چې د يوه ښه ملګري ټولې ځانګړنې يې درلودې له لاسه ورکړ... ما په لوړ غږ چيغې کړل او سخت مې وژړل.

هغه هېروئين مې چې ورته اخيستې و، څلور برخې مې کړل او څلورو روږدو ته مې ورکړل؛ مړى مو له خېمې څخه د (اللهم صلى على محمد و على آل محمد) په ويلو سره پورته کړ او د پله سر ته مو يووړ، څو پوليس راشي او انتقال يې کړي.

پوليس راغلل، مړى مو ورته تسليم کړ او موږ بېرته خپلې خېمې ته راغلوو... کله مې چې خپل وسايل وکتل، ټول غلا شوي وو، د آته د زوى يوازې پښې روغې پاتې وې، نور بدن يې ټول ټوټه ټوټه شوى و. ډېر خپه او غمجن شوم، له خپل ځاى څخه اوچت شوم، پرېکړه مې وکړه چې نور به دې بدمرغه خېمې ته نه راځم.

څو تنه په بېړه راغلل او له خېمې څخه تاو شول.

مخکې مې يوه ملګري راته ويلي و: نستوه وروره! که لاړ نه شې وژني دې.

ورته ومې ويل: ولې؟

ويې ويل: مواد پلورونکو وويل که چېرې نستوه له دې ځايه ورک نه شي، کومه ورځ به کوم خبريال راشي د نستو په اړه به خبر جوړ کړي، دا د دې سبب کېږي، چې په پل سوخته کې زموږ کار او ګټه له ګواښ سره مخ شي، مخکې يې هم انځور اخيستل شوى و او په پله باندې سرېښ شوى و.

ملګري مې خبرو ته دوام ورکړ او وویل: چې مواد پلورونکو په خپل مینځ کې ویل: که لاړ نه شي، د ده د وژلو ښه لاره دا ده چې یوه غښتلي پوډري ته ځلور ګرامه مواد ورکړو ځو دی د چاقو په وسیله له منځه یوسي.

نستوه وروره! غوره لاره همدا ده چې ډېر ژر پل سوخته پرېږدې کنه د سلګونو نورو کسانو په څېر چې تر پل سوخته لاندې ووژل شول ته هم وژل کېږې.

وروسته مې فکر وکړ چې د آته زوی هم لاړ او له دې وروسته دا ځای ډېر خطر ناک دی، بهتره ده چې دا ځای پرېږدم... پاڅېدم او د پله ځلور خواوې مې له سترګو تېرې کړې، چې د تور پل د «۱۱۳» سپل ترخنګ دری جسدونه پراته دي، یو سپین ږیری کاکا همدا محال د ساه ورکولو په حالت کې و، بل اړخ ته یو مواد پلورونکی له ښایسته هلک سره په خندا او مستۍ مصروف و، بلې خنډې ته لږ وړاندې یوه ښځه له ډېر خمار څخه ځورېده، زما ترخنګ یو ماشوم له لوږې کړېده او چا یې غږ نه اورېده، په همدې ډول زرګونه نورې پېښې چې هره یوه یې ترخه وه، د انسان زړه یې ماتوه او په غمونو یې اخته کاوه.

له دې ځایه مې حرکت وکړ، بېرته د آته د زوی خیمې ته نږدې شوم، ستونی مې له ډېره غمه ډک کېده، په زړه کې مې ویل: د آته زویه! د قیامت په ورځ د لیدو په هیله، کله مې چې د پله ځلورو خواوو ته وکتل زرګونه غمجنو کیسو زه هم د مېلیونونو روږدو کسانو په څېر داسې راګیر کړم، چې په زړه کې یې ساتلې وي او تور زړه یې ورځ په ورځ لا توروي.

په چټکۍ سره د پل سوخته داخل ته لاړم، د کومې کندې په مینځ کې چې مخکې وم، هلته مې شاوخوا ته وکتل، ګورم چې روغ انسانان د تګ راتګ په حال کې دي، په چټکۍ سره له ګنده کندې را ووتم او شاه ته مې وکتل؛ په زړه کې مې وویل: ای ناځوانې تمساح! د الله په امان، ای ناځوانه پله، د خدای په امان. ای د مافیا د شیدو غوا د الله په امان، ای د ستومانه کورنیو، د هیلو او امېدونو قصاب خانې! په مخه دې ښه...

پرته له دې چې پوه شم زه چېرته ځم د دواخانې ګولایي څخه مې د سرای غزنې په لوري حرکت وکړ، اوس تیاره خوره شوې وه، له مجللو ودانیو څخه د تېرېدو په حال کې وم چې د ماشوم غږ مې په غوږو کې وکړنګېده: «پلاره راشه راځه کورته!»

دې غږ ډېر وځورولم، هغه جمله چې زما ماشومان یې هېڅکله هم نه شي ویلی. پلار یې له دې پل څخه هغه پل او له هغه پل څخه دې پل ته خپل ټول عمر له صفر سره یو کړ، همداسې په خیالاتو او فکرونو کې ډوب شوم ایا داسې ورځ به هم راشي چې روږدیتوب پرېږدم، د وجود په داخل کې مې یوې منفي انرژۍ اړکولم چې ووایم: نه، نه!

وروسته مې له ځان سره وویل: که چېرې ښه نه شم او روغتیا مې په برخه نه شي، نو ځان وژنه خو کولای شم، څو ارام شم او په ابدي خوب ویده شم، داسې احساس مې کاوه، چې د آته زوی څومره خوشبخته و، له چیغو او فریادونو پرته یې خپل ژوند ته دې پای ټکی کېښود او ارام شو. په زړه کې مې وویل: خدایه ولې مې نه ارامه کوې؟ زه له دې ژوند څخه تنګ شوی یم، نور مې ژوند راڅخه واخله!!!

دا چې د اوسېدو ځای مې ورک و او بې وسې گیر کړی وم، په همدې خاطر سخت کړېدم، کله به مې چې خپلو زړو بوټو، خیرنو جامو، خیرن او له بد بویې ډک وجود او خیرنو اوږدو وېښتو ته وکتل، زه به پوهېدم چې له خواره او حقیقي ژوند سره څومره اوږد واټن لرم. خپل ځان او ټولنې ته مې څومره زیان رامنځته کړی، یو پیاوړی ځواک چې کولای یې شول د افغانستان خراب وضعیت له پاره اغېزمن واقع شي، اوس مهال په نابودۍ او له منځه تلو حالت کې دی، همداسې مې چې خپلې لارې ته دوام ورکاوه، احساس مې کاوه چې د جکړې په میدان کې د زرگونو هیلو او خیالاتو سربېره په سرو سرگردانو مرمیو لگېږم، دومره ډېر پلی وگرځېدم چې نور مې پښې سترې او بې سېکه شوې وې، کله مې چې شا او خواته وکتل او فکر مې وکړ، آن د شاه دو شمشېره د پله سرته رسېدلی وم.

توره شپه وه، د اریانا مارکېټ له چوکیدار او څو سپیو پرته بل هېڅوک نه لیدل کېدل، د شاه دوشمشېره پله څخه مې د سینما پامیر پله پر لوري حرکت وکړ، پله ته چې نږدې شوم د معتادانو یوه ډله مې ولیده چې دلته ناست دي، زه هم ورنږدې شوم، پیسې او شیشه هم راسره وو او د څکولو له پاره مې یې یوازې پیپ نه درلود، یو لوړ جگ قدی ځوان مې ولیده چې پیپونه جوړوي او پلوري یې؛ شل افغانۍ مې ورکړې څو پیپ راکړي، خو دې ځوان پیسې نه راخخه اخیستې، پیپ یې وړیا راکړ، د دې ښېگڼې په بدل کې ما یو څه شیشه ورکړه، ما چې ده ته کتل، په دې پوه شوم چې زړه یې راسره ولگېده او غواړي چې راسره ملگری شي، خبرې مو وکړې هغه هم د خپل ژوند او ماتې په اړه وویل: په ملي اردو کې وم، په نشه یې توکو روږدی شوم او اوس له بده مرغه دلته دغسې حالت ته رارسېدلی یم.

دا ځوان ادریس نومېده، لوړ او د ښه هیکل لرونکی ځوان و، چې اوس یې وزن ډېر کم شوی و، ادریس د پیپ جوړولو خپل ټول وسایل راټول کړل، وروسته یې ماته وویل: «نادري صیب! بهتره ده چې له دې ځای څخه لاړ شوو، زموږ خواته ډېر ښه ځای دی، ما ورته وویل: سمه ده، څه چې لاړ شوو.»

حرکت مو وکړ، د رجال برجسته ریاست څخه تېر شولو، د تخنیک لېسې ته ورسېدو، کله چې له هغه ځایه تېر شولو د شاه دو شمشېره پله سرته ورسېدو، وروسته ادریس په یوه پړي باندې ځان ځوړند کړ، د پله لاندې برخې ته یې ځان ورساوه، ما هم ورته کار وکړ، دا وخت زما وزن ډېر کم شوی و، له یوه ځای څخه ښکته کېدل او پورته کېدل ډېر راته اسانه شوي وو، کله چې ښکته شولو، د شاه دو شمشېره پله ختیځ لور ته د کاکا یونس په نوم یو سپین ږیری و چې د جمشېد په نوم یې یو ملګری درلود، د «مهره ملنګ» په نوم یو بل کس هم همدلته و، ادریس زه دوی ته وروپېژندلم، جمشید او مهره ملنګ زه له وړاندې پېژندلم، ویې ویل: هو پېژنو یې دا نستوه نادري دی؟!»

ادریس راته وویل: په پل سوخته او یا کوم بل ځای کې څه کوې؟ همدلته له موږ سره پاتې شه، ما هم ورسره ومنله، شپه اوږده وه او زموږ مصرف هم پیيل شو، دې ځای له پل سوخته سره ډېر توپیر درلود، دلته فرهنګ بېخي بدل و، یو او بل ته به یې سختې ښکنځلې کولې، یو عادت یې ډېر ناوړه و، دا ډېره بده او له ظلم څخه ډکه ټاکنه وه، دوی به چې کله د سپیو کوچني بچیان ولیدل، په ډېره بې رحمی به یې وژل.

ادریس راته وویل: زه د لسو دقیقو له پاره چېرته ځم، بېرته راګرځم، ته همدلته اوسه.

لس دقیقې وروسته د سپو له دوه بچیانو سره راغی... ویې ویل: صبر چې ساعت تیري وکړو، د سپي یو بچی یې راونیوه، تر ډېره یې له مری کلک نیولی و، نږدې و چې مړ شي... وروسته یې په ځمکه اوږد څملاوه، د هېروئینو دود یې سپوږمو ته ونیوه، سپی وکوږنجېده، له خپل ځای څخه پورته شو، د مهره ملنګ خواته نږدې شو، ملنګ دا مهال کرستال څکول، سیخ یې تیار ګرم و، سپی یې په نس کې ورباندې وواهه، د سپي چیغه پورته شوه، ادریس بیا له ځمکې څخه پورته کړ، په ډېرو پوچو الفاظو او ښکنځلو یې بیا زندی کړ، دومره وخت یې زندی کړ، چې بالاخره یې له خولې څخه وینې وبهېدې، کله یې چې خوشی کړ، دمه یې ختلې وه او مړ شوی و، دا وخت ټول چوپ شول، وروسته یې د مهر ملنګ خواته وکتل او ورته ویې ویل: «دا تر سبا شپې پورې وساته، څو بیا ساعت ورباندې تېر کړو.»

وروسته یې هېروئین په پرلپسې ډول وڅکول او ویې ویل: خی ته همدلته پاتې شه، زه او نادري صیب دواړه ځو د مخزن کوڅې ته، په هغه ځای کې مو د تېلو پلورلو یو دکان تر سترګو کړی، موږ به لاړ شو څو هغه دکان لوټ کړو او سبا بیا د ځان خمارولو غم وخورو.

ادریس حرکت وکړ او مطلقه چوپتیا خوره شوه، د شاه دو شمشېره پله له خیتځ لور څخه د یوه ځوان هلک غږ پورته شو، ویې پوښتل: مهره ملنګه خیرت دی؟ مهره ملنګ داسې برېښېده لکه برېښنا چې نیولی وي، له

خپل ځایه پاڅېده او ویې ویل: امر وکړه رئیس جانه؟ نستوه نادري دی. هغه په نورین تلویزیون کې چې ویاند و.

په ناڅاپي توګه د دغه ځوان علاقه زیاته شوه ویې ویل: نادري صیب! دا ځای چېرې او تاسو چېرې؟ څه کوې؟ دا ځای ستا ځای نه دی راځه د کابل سیند ته زموږ خواته، د شاه دو شمشېره پل زموږ ترمنځ وصلوونکې نقطه وه، ورته ومې ویل: هلته نه شم درتللی.

ویې ویل: ستونزه نه شته، مهر ملنګه! له نادري سره مرسته وکړه چې د پل خشتي دوه خوا وو ته راشي.

تر پله لاندې ډېر پلاستیکونه او اشغال چې کراچۍ لرونکو اچولي وو پراته وو، مهر څو دانې پلاستیکونه زما تر پښو تاو کړل ویې ویل: ورځه د پله هغه غاړې ته له اوبو تېر شه، د هغه ځوان څراغ روښانه و او د پله بلې څنډې ته مې ځان ورساوه، دا ځای د نورو پلونو او ځایونو په پرتله برعکس ډېره لویه خېمه په کې وهل شوې وه او ډېر روښانه و، یوه ګازي ګیس هم دلته لمبې وهلې، کله چې دې څنډې ته ورسېدم، دغه ځوان په خپله غېږ کې ټینګ کړم، ویې ویل: سلام لالا! زما نوم لالی دی، د خدای په قدرت سره چې د دویمې حوزې په ساحه کې هېڅوک انتن نه راکوي، په ورور باندې دې د پولیسو زور هم نه رسېږي.

په مسکا سره یې د کمیس له لاندې یوه بریتا تمانچه راوایسته، راته ویې ښوده او ویې ویل: مال د خدای دی شپږ/اووه دانې له همدغه ډول تومانچو دې له ورور سره شته دي، راځه د ننه نادري صیب، کله چې خیمې ته د ننه شوم، په اغلب ګومان یو پینځلس کلن او په څېره کې ډېر ښکلی

هلک په (۱۲۰) کوټه کې ناست و او چرس یې څکول، لالي چې را داخل شو همدې ځوانکي هلک ته یې وویل: هارونه! وګوره څوک راغلي دي نستوه نادري راغلی، هغه په نورین تلویزیون کې یې چې ویندویي کوله او ځینې خپرونې یې پرمخ بېولې.

ځوانکي وویل: هو؛ دا پېژنم ما په غزني کې د ده خپرونې کتلې.

مسکی شو، ویې ویل: ښه راغلاست نادري صیب!

لالي ته یې وویل: دا ویاند کاکا دې له کوم ځای څخه راوستلی دی؟

ورته ویې ویل: چې دی راغلی و، له مهره ملنګ سره ناست و، ورته ومې ویل: افسوس ستا پرحال، په همدې چل مې راوایسته خپلې خېمې ته.

کله چې کښېناستم، ګورم چې تر پښو لاندې مو یوه وطني مزارۍ لاسي اوبدل شوې قالینه غوړېدلې وه، د خېمې په یوه څنډه کې څو دانې فلېټ تلویزیونونه چې شاوخوا پنځوس انچه و، اېښودل شوي و، څو پایې د خیاطۍ ماشینونه، لسګونه دانې ښځینه دستکولونه، د آش ماشینونه، جنراتور او داسې نور...

لالي وویل: نادري صیب! څه اشتها لرې؟

ځواب مې ورکړ: هېڅ شي ته مې زړه نه کېږي، یوازې غواړم چې شیشه ووهم.

ویې ویل: هارونه! نادري صیب ته یو نوی پیپ ورکړه او شیشه هم ورته واچوه.

دا کار یې وکړ، وروسته پوه شوم چې لالی یو له هغه خطرناکو مجرمانو څخه دی چې د پولیسو تر تعقیب لاندې دی او هارون یې د خپلې «جنسي» استفادې له پاره ساتلی دی، هارون د شیشې پیپ ماته راکړ او په څکولو مې یې پیل وکړ؛ لالي وويل: نادري صیب! دا ځای دې خپل کور دی، بېغمه همدلته له موږ سره اوسه، نشه دې درته رسېږي او یوه اندازه جېب خرڅ به دې هم درکوم؛ نور څه غواړې؟

ځواب مې ورکړ: لالی صیب! دا ټول کارونه چې تاسو کوی، په بدل کې یې زه ستاسو له پاره څه وکړم؟

مسکی شو، ویې ویل: هېڅ هم مکوه نادري صیب! زموږ او تاسو وروري ده؛ بیا هم کومه خبره نه ده کله چې پولیس راغلل، ورته ووایه چې دلته زه خپله ژوند کوم، ستا په لیدو سره پولیس خیمې ته نه دې ننه کېږي او موږ هم نه ځوروي.

ورته ومې ویل: په دې اړه به بیا خبرې کوو.

مسکی شو، ویې ویل: څه خبرې به کوو؟ سر له همدا اوس څخه له موږ سره یې نادري صیب.

د دې خبرې په کولو سره یې یو ډول اشاره وکړه او هارون ماته نږدې شو، ویې ویل: هو نادري صیب! د پاچاه په څېر له موږ سره ژوند کوه، څه کوې چې د معتادانو په څېر هر ځای گرځې؟

لالی او ټول معتادان پوهېدل چې د ټولنيز افت پر وخت زما پروړاندې پولیسو د خپل ځان له پاره یو ښه مقام درلود، د ترحم هغه مقام چې کله به راغلل ټول معتادین به یې وهل ډبول، او ورته ویل به یې، چې د سړک

په خندو کې مه اوسئ، خو زما په لیدلو سره به یې د زړه سوي په توګه چلند کاوه او ویل به یې، چې ګران نادري هیله کوم څه کوې؟ نور روغ شه! ایا ستا پرحال افسوس نه دی؟ زما چلند مجرم معتادین لېواله کول چې زه له دوی سره واوسم، لالی او هارون پوهېدل چې زما زړه نه کېږي او د دوی غوښتنه نه منم، په همدې وخت کې د پله له پاسه د څو تنو غږ راغی: رئیس، رئیس، لالیه وروره شته یې؟

لالي په غرور سره وویل: هو، ټول په یوه رسۍ راښکته شول، جالبه دا وه چې ټولو زه پېژندلم.

د هغوی له جملې یوه کس چې ځان یې نسبت نورو ته ډېر غښتلی ګانه. لالي ته یې وویل: اې لالیه، نادري پرموږ کومه خپرونه جوړه نه کړي، پام دې وي چې ډېر خطرناک ویاند دی.

ټولو وخندل، لالي هغه هلک ته وویل: نه داسې نه ده نستوه زموږ ورور دی وروسته له دې به له موږ سره وي.

د دې جملې په پای ته رسېدو هارون ماته نور هم نږدې شو، هڅه یې کوله چې ما دې خپل ځان خواته جلب کړي، کوم هلکان چې لالي ته راغلي وو، دوی جالب نومونه درلودل، د هغوی له جملې د یوه نوم ګري ګري و، د بل نوم جیټ و، د بل جیک ترکیه او د یوه بل نوم مایکل و؛ وروسته لالي وویل: ښه څه وکړو هلکانو؟ څه مو وکړل؟

ګري ګري لالي ته وویل: مایکل یو غوړ ځای تر سترګو لاندې کړی و. ومې ویل چې دوه ورځې یې تعقیب کړئ، نن شپه د یوه کور ټول غړي

واده ته تللي دي، د دې کور د لوټولو په خاطر مې جيټ او جيک هم راوستلي دي.

جالبه دا وه چې مايکل د لالي له همدې ډلې نه د هغه کورونو د تعقيب دنده درلوده، چې ټول کور يوځای ته لاړ شي او وروسته دوی د غلا له پاره کورته ور د ننه شي. جيټ يو ډنگرکی هلک و، چې له کور څخه د باندې د وسايلو په ايستلو کې يې لوړ څواک درلود او جيک ترکيه هم کولای شول چې له يوې دقيقې څخه په کم وخت کې هر ډول قلف چې وي خلاص کړي، لالي مايکل ته وويل: چې کور چېرته دی؟

ويې ويل: کلوله پشته کې دی»

ويې ويل: پورته شئ چې حرکت وکړو!

ټول له خپل ځای څخه پاڅېدل، زه هم پورته شوم ورته ومې ويل: لالی صيب! ماته هم اجازه راکړه چې لاړ شم سبا بيا بېرته راځم، ناڅاپه لالي وويل: څه کوې چې ځې نادري صيب!؟ نن شپه خو مېلمه يې او بل دا چې ما هېڅکله هم هارون له چا سره يوازې نه دی پرېښی، ته لومړی کس يې چې هارون له تاسره يوازې پرېږدم، موږ د برېښنا په څېر ځوو او بېرته راځوو.

هارون زما لاس ټينگ کړ او ويې ويل: نادري صيب! هيله کوم مه ځه، ته له ما سره پاتې شه، ورته ومې ويل سمه ده، لالی او نور هلکان لاړل، زه او هارون په خېمه کې يوازې پاتې شوو، لالي په دې کار سره غوښتل چې ما نور هم لېواله کړي، دوه درې ساعته به يې زه له هارون سره يوازې پرېښودم، څو په يو ډول زه له هارون سره جنسي اړيکې پيدا کړم او له

هارون سره د لېوالتیا له امله د ده ترڅنګ پاتې شم، هغوی لاړل په ټوله خېمه باندې چوپتیا خوره شوه، د ګیس د روښنايي سیوري هغه یوه اړخ ته هارون ناست و، شنې سترګې، ښکلي تور بانه یې درلودل او له رنګه ډېر سپین و؛ کله کله به داسې فکر راسره پیدا کېده، چې دا هلک دومره ښکلی دی، الله تعالی ولې نارینه پیدا کړی، ولې یې د نجلۍ جسم نه ورکاوه؟ د چونګښو غړونو ټوله سیمه نیولې وه، هارون هم چوپتیا ماته کړه او ویې ویل: کله چې ویاند وې، دا فکر دې کوم وخت کړی و، چې ته به په نشه یي توکو روږدی شې؟

ورته ومې ویل: نه! وروسته مې ترې وپوښتل ستا کور چېرې دی ولې خپل کورته نه ځې؟

ویې ویل: ما د تل له پاره خپل کور پرېښی دی، زموږ کور په غزني کې و، له کور څخه وتښتېدم، د غزني ښار کې له لالي سره مخامخ شوم او وروسته کابل ته راغلم، اوس له بل هرچا څخه لالی ما ښه ساتي، هرڅه راته اخلي او ډېر ښه هلک دی؛ نادري صیب! راځه چې دا خېمه سمه درته وښیم!

د خیمې په لوري لاړم، یوه پرده یې درلوده هغه مې پورته کړه، ګورم د خوب یو دوه نفري تخت چې پلاستیکي بورۍ له شګو ډکې شوې دي جوړ شوی و، ویې ویل: چې زه او لالی د شپې لخوا په دغه ځای کې ببده کېږو، پیسې لرو، ټوپک لرو، تمانچه لرو، تراوسه پورې دې زموږ په څېر داسې لوی او غیرتي روږدي لیدلي؟).

ومې ویل: نه! پوښتنه مې ورڅخه وکړه: ته هم روږدی یې؟

ویې ویل: هو، لالی پوډر وهي او زه شیشه وهم، دا خبره پټه درسره وساته، لالی خبر نه شي چې په غوسه کېږي.

له جېب څخه یې یو پیپ راوایسته، یوه اندازه شیشه یې په کې واچوله او لږ یې ماته راکړه، په شیشه وهلو مو پیل وکړ، د ګیهځ آذان ته نږدې وو، چې له شیشه وهلو وروسته هارون له خپل ځای څخه پاڅېده، لاړ د خوب په هماغه تخت کې اوږد پرېوت، ویې ویل: نادري صیب راځه چې ویده شو.

ما ورته وویل: سمه ده خو که اجازه راکړې چې صحرا ته لاړ شم، د تازه هوا اخیستو په بهانه مې د فروشګاه پله خواته وکتل، هلته د لارې په اوږدو کې د فروشګاه ترپله پورې ضعیف څراغونه ځلېدل، له سیند څخه مې د فروشګاه خواته حرکت وکړ، د سیند په څنډه کې وچ ځای و چې د معتادینو د تګ راتګ په لاره بدل شوی و، په همدې لاره باندې ډېر چټک لاړم، وروسته مې په منډو وهلو پیل وکړ، څو د روږدو کسانو ډلې ته نږدې شم، ښه پوهېدم چې لالي زه له همغه ځای څخه شارلم، څو په هغه حرکتونو چې هارون ترسره کول په یو ډول له هارون سره جنسي لېوالتیا پیدا کړم، په همدې وخت کې د ده ملګري راشي، و موویني، بیا همدا راته بهانه کړي او له همدغې بهانې بیا دا کار واخلي چې زه تل د دوی پیرو او غلام پاتې شم، ځکه چې لالي هارون د دې ترځنګ چې په خپله یې استفاده ورڅخه کوله، دغه کار یې هم د ده په وسیله او مرسته کاوه.

په منډو مې ځان د فرخندې تر ځلي ورساوه، دلته یو شمېر روږدي راټول شوي وو، نږدې سهار و، ټول خوب نیولي و فضاء غلې وه، د جوماتونو آذان پای ته رسېدلی و، په یوه مسجد کې چا د کمیل دعا لوړه پرېښې وه او په

لوډسپیکر کې یې انګازې کولې، دا دعا دومره خوږه راباندې لګېده لکه مور به مې چې په مینه خبرې راته کولې، چې د همدې دعا په غږ سره مې خپله شاه پر دېوال ولګوله او سترګې مې پټې کړې، حس مې وکړ چې د څو دقیقو له پاره خوب راغی، په ناڅاپي ډول د لالي غږ راویښ کړم، سترګې مې پرانیستې، ګورم چې لالی او هماغه ډله یې د فرخندې منار ته راغلي دي او مایکل لالي ته یو ځوان هلک وروښوده؛ ځوان هلک له څېرې داسې ښکارېده چې نوی په شیشه وهلو راغلی دی، لالي هارون ته وویل: چې دا تراتېزک هلک تلاشي کړه هارون تلاشي پیل کړه، هرڅه یې چې موندل او لاسته ورتلل، لالي ته یې ورکول، روږدي د هغه ونې په څېر رېږدېدل، لکه د مني یخ باد یې چې رپوي، زه هم هغه وخت پوه شوم چې دوی ډېر خطرناک انسانان دي، د ځوان هلک له جېب څخه یې یو مبایل موبایل راوایست، کله چې دې ځوان د خپل موبایل غوښتنه ترې وکړه، پرمخ یې په څاپړه وواهه، هرڅل به چې ځوان دا غوښتنه وکړه، همداسې یې ورسره کول... دوه زره افغانۍ او ځینې نور شیان یې هم د هغه هلک له جېب څخه وایستل، ځوان ژړل، په همدې وخت کې لالي خپله تمانچه راوایسته، ځوان د مرمۍ په څېر د فرخندې له منار څخه وتښتېده، څو یې ونه ولې او مړ نه شي...

د لالي یو ملګری جیک ترکیه رانږدې شو، راته ویې ویل: ښاغلی نادري! بیا څنګه زموږ له خېمې راغلی یې او دلته دې ځان را رسولی دی؟

ورته ومې ویل: چې دلته ډېر آرام یم.

لالی نږدې راغی، راته ویې ویل: هرڅه چې د نادري زړه غواړي ویې دې کړي.

را نږدې شو زما پر اوږه یې لاس کېښود ویې ویل: نادري صاحب ډېر با عزته انسان وختې، زه منتظر وم چې هارون ته لاس ور اوږد کړې او اته مرمۍ دې پر سر وولم، که دې داسې کړي وای، اوس به دې مړی دغه سیند ته غورځول کېده او تر پاکستانه به ستا مړی اوبو وړلو، هارون جان ته څو کسانو په بده سترګه کتلي دي او هغوی ما وژلي دي، تر کومه وخته چې ته له موږ سره په یوه لاره روان وې، ترهغې هېڅوک څه نه شي درته ویلی، په هرڅه کې زه ستا دفاع کوم او په خدمت کې دې یم.

ارامه ساه مې واخیسته، دری/څلور ساعته د فرخندې له منار سره پاتې شوم چې د لالي ملګری جبېټ راغی او راته ویې ویل: رئیس ته غوښتی یې.

ومې ویل: چا؟

ویې ویل: (لالي)

حیران پاتې وم څه وکړم، ووېرېدم چې ولې دوی دومره په ما پورې نیښتي دي...؟

لاړو د شاه دو شمشېره تر پله لاندې لالی ناست و. ویې ویل: نادري صیب! موږ بد خلک نه یوو، خو دا چې ته له موږ څخه لرې ګرځې او واټن نیسې، په دې نه خپه کېږو او ستا درناوی کوو، مګر! «یوه هیله او غوښتنه درڅخه کوم، ما هلکانو ته دنده سپارلې چې د فرخندې د منار خواته لاړ شي، هلته تا ته مناسب ځای جوړ کړي او ته هملته واوسې، خو که پولیسو نه پرېښودې او مزاحمت یې درته کاوه، نو بیا بېرته خپلې کوټې ته راشئ. کوم ځای چې اوس تا ته جوړوي، دا ځای هم پټ او مناسب ځای دی. له جیبټ سره حرکت وکړه.»

راغلوو، د تخنیک لېسي په څټ کې یو پُولچک و، چې د کوماز موټر له فریم څخه جوړ شوی و، ومې لیدل چې څو موکېټونه یې هم دلته غورولي دي، جیټ (۱۳۰) وویل: همدلته اوسه ویاند جانه.

لږ شیشه یې هم راکړه، زما له پاره دا ځای په پینځه ستوریز هوټل کې په یوه لوکسه کوټه باندې بدل شوی و، اوږد وغځېدم، جیټ هم د پُولچک خوله په یوه زړه ټوټه باندې وپوښله څو ما څوک ونه ګوري او نور په خپله مخه لاړ، کله چې جیټ لاړ، څو دقیقې نه وې تېرې شوې چې ادریس راغی، دا هماغه کس و کوم چې لومړی ځل د شاه دو شمشېره پله ته راغلی و، د سپي له یوه بچي سره زما کوټې ته را د ننه شو، ویې ویل: نادري صیب اجازه ده؟! اجازه غوښتل خو د دوی له پاره هسې یو عادي کار و، ګني زما اجازې او یا نه اجازې ته یې ارزښت نه ورکاوه... ویې ویل: نستوه! ته ولې نه غواړې چې له لالي سره واوسې، ډېر ښه ځای یې درکړی دی، دومره غم څه کوې، ګرانه نادري راځه چې لږ مزې وکړو، وګوره.

د سپي بچی یې ټینګ ونیوه، یو سوک یې په سر وواهه، سپي اوږدې پښې وغځولې او په بشپړ ډول بې هوښه شو...

له یوې دمې وروسته یې وویل: نادري صیب! وګوره چې څنګه په هوښ راځي!؟

د سپي پر تناسلي آله یې لایټر ونیوه، سخت وکوږنجېده، په ناڅاپي توګه یې په ډېره غوسه راواخیست او د سپي په ټول بدن یې خولې ولګولې، وروسته یې خوله پرې پټه کړه او د پوزې په سوریو کې یې ژاوله ور سرېښ کړه، ویې ویل: نادري صیب د مړي نڅا وګوره.

سپي ډېر عجیب حرکتونه ترسره کول، زما مسولیت خو دا و چې دا سپی له دې حالته وژغورم او ادریس ته ووایم: چې گوره دا ظلم دی، گناه لري، داسې مه کوه، خو له بده مرغه زه هم ورسره ملگری شوم او د ده له ظلم نه مې خوند اخیسته؛ پینځه دقیقې وروسته سپی مړ شو... ادریس وویل: والله چې ارام شوم، تریوې ورځې پورې به په خپل حال واوسم، اوس به لاړ شم او دا سپی به په یوه گوښه کې ترخاورو لاندې کړم. زما له کوټې څخه ووته، څو شپې وروسته سپېره لاسونه بېرته راغی، ویې ویل: د سپي کار ختم شو، خښ مې کړ او بېرته ترې راغلم، ښه شو چې ستا ځای مې ولید، نور به حتمًا کله کله ستا لیدو ته راځم.

په همدې ډول ډېر کسان تلل او راتلل؛ له هغه پیسو چې کاکا مې را لېږلې وې لږ پاتې وې، د څو ورځو په تېرېدو سره هغه پیسې هم خلاصې شوې او زه هم ورځ تربلې کمزوری کېدم؛ که به مې یوه ډوډۍ پیدا کوله شیشه نه وه او که به مې شیشه پیدا کوله ډوډۍ به مې نه شوی پیدا کولای.

ډېرې ورځې په همدې بدبختۍ کې تېرې شوې، یو ځل مې پام شو درې میاشتې تېرې شوې وې چې نه پل سوخته او نه هم خپل پلرني کورته تللی وم؛ له شپو نه یوه شپه وه چې د څو کسانو غږ مې واورېده: نادري نادري! له کوټې څخه راووتم، گورم چې یو قوي او ښه هیکل لرونکی سړی له دوه نورو ځوانانو سره ولاړ دی، راته ویې ویل: نستوه جانه! زه د همدې گل پلورنځیو څوکیدار یم، اصلي د پنجشېر اوسېدونکی یم، زه غواړم له تاسره خبرې وکړم.

ورته ومې ویل: راځه دلته راښکته شه!

کله چې راښکته شو، زه يې چې له نيږدې وليدم په ژړا شو، ويې ويل: زه دلته ستا د ليدو توان نه لرم، دا دوه ځوانان زما بچيان دي، دا درې مياشتې کېږي چې وايي نستوه نادري دلته دی، خو له بده مرغه زه سخت مصروف وم، ومې نه شوی کولای چې ژر ستا خواته راشم او ودې ګورم، زما خو په وس نور څه نه دي پوره، خو دومره کولای شم، چې د خپل بچي په لاس هره ورځ درې وچې ډوډۍ درته راولېږم، خو ته هم هڅه وکړه چې خپل کورته لاړ شې، ترکومه وخته به دلته په داسې حال کې پروت وې...؟

ورته ومې ويل: کورته ځم؛ خو باور وکړئ چې تر کوره پورې د تګ پيسې نه لرم.

ويې ويل: ستونزه نه شته، زه سبا جامې درته راوړم او پيسې هم درکوم خو ته به وعده کوې چې خپل کورته مې ځم.

ومې ويل: سمه ده، سبا شاوخوا درې بجې يې يوه جوړه جامې له ښېږ سوه افغانيو سره راته راوړل، ويې ويل: لومړی راځه چې د اندرابي کوڅې ته لاړ شوو، هلته به خپل ځان ووينځې چې له دې خيرو پاک شې.

ورته ومې ويل: زه په خپله ځم، ته مه راسره ځه.

ويې ويل: «نه زه دې بيايم» ما هم ورسره ومنله.

حمام ته لاړو، جامې مې واغوستې او وروسته يې وويل: لاړ شه کورته، کوښښ وکړه چې په روغتون کې ځان بستر کړې.

ورته ومې ويل سمه ده، له هغه سره مې مخه ښه وکړه، له ښهر دروازې سره نږدې په برچي کې په يوه کاسټر کې کښېناستم او يوځل بيا د پولې

سوخته ببخ ته ښکته شوم، پینځه سوه پنځوس افغانۍ راسره وې، دلته مې یو ملګری ولیده، راته ویې ویل: ژوند څنګه کوې؟ منده نه شې کولی، د جیبونو په وهلو کې هم مهارت نه لرې، نور به نو څه وکړې؟ راځه یوه سرمایه درته جوړوم، د شیشې او هېروئینو د پېر او پلور کار پیل کړه، کله دې چې ښې ډېرې پیسې پیدا کړې بیا به زما حق راکړې.

ورته ومې ویل: سمه ده زه پینځه سوه افغانۍ لرم.

ویې ویل: «ډېر ښه، پینځه سوه نورې زه درکوم، دوه نیم ګرامه هېروئین او پینځه ګرام شیشه اخلو، هر ګرام یې په نیم ګرام کڅوړه کې ځای پرځای کوو، یانې له یوه ګرام څخه پینځه نیم ګرامه شیشه په پینځو کڅوړو کې جوړه وو، نن کولای شو په دې ډول دوه زره افغانۍ وګټوو، خو ته به بیا ماته خپلې پینځه سوه پیسې راکړې، یونیم زر ته واخله.»

ما ورسره ومنله، ده راته وویل: «نو څه چې د رحتمي خواته ورشوو.»

رحمتی یو عمده پلورونکی و، زما پیسې یې واخیستې او مواد یې راکړل؛ هماغه کار مو وکړ، د شپې تر تاریکۍ پورې زموږ پیسې دوه زره شوې وې، د شپې مې چې ملګری خواته راغی اووه سوه مې ورته ورکړې، ده راته وویل: ما ته یوازې خپلې پینځه سوه روپۍ راکړه، ما ورته وویل: نه، دوه سوه ګټه دې هم واخله، خو ده بیا هم ټینګار کاوه، چې نه زه ګټه نه اخلم، مګر ما ورته وویل: چې زه دا نه منم، دا ستا حق دی، بالاخره یې خپله دوه سوه ګټه هم واخیسته. زه بیا لاړم، په دیارلس سوه افغانیو مې دیارلس ګرامه شیشه واخیسته او په پلور مې یې پیل وکړ؛ یو سپین ږیری کاکا چې ما به تل په هزاره ګۍ لهجه کې ورته «ابغه کاکا» ویل، رانږدې شو ویې ویل:

«نستوه جانه، دا پرچون پلورنه هېڅکله تاته مناسبه نه ده، ښه کار نه کوې، دا کار د پل سوخته د خلکو په نظر کې تا خوار او ذلیله کوي، خپله پوهېږې چې په پل سوخته کې څومره خلک له تا سره مینه لري، په دې کار سره ځان مه خرابوه.

په همدې جر او بحث کې وو، چې یو ځوان راغی سل افغانۍ یې راکړې، او ویې ویل: شیشه راکړه، سل افغانۍ مې ترې واخیستې شیشه مې ورکړه او وروسته مې وویل: ابغه (کاکا) زه له پل سوخته لاړم، ویې ویل: ورځه لاړشه خو دا کار نور مه کوه، دغه وخت راسره دولس ګرامه شیشه او سل افغانۍ وې، بیا د سینما پامیر پرلور په یوه موټر کښېناستم، د جوی شیر پله ته راغلم، وېره مې دا وه که چېرې ما څوکیدار وویني، نو پروړاندې به یې ډېر کم راشم، بیا هم په زړه کې مې ویل چې خیر هېڅ خبره نه ده، که یې پوښتنه وکړه، ورته وایم چې زه لاړم، مګر کورنۍ مې په کور کې نور نه پرېښودم.

خپلې کوټې ته راغلم، دولس ګرامه شیشې داسې مغرور کړی وم، فکر مې کاوه چې د نړۍ سرمایه لرونکی سړی زه یم، څو دوده شیشه مې ووهله او ویده شوم؛ دوه شپې او ورځې ویده شوی وم، کله چې راویښ شوم ډېر خمار وم، د کمیس جېب ته مې لاس کړ، څو شیشه راوباسم، ګورم چې جېب مې په قیچي/پرې شوی دی او ټوله شیشه یې راځخه وړې ده، داسې بد تاثیر یې راباندې وکړ لکه څوک مې چې د زړه پرسر په خنجر ووهي ، د خمار له امله مې چیغه وکړه، ومې ژړل، له ځان سره مې وویل: زما خدایه! ولې ماته مرګ نه راکوې؟ ولې مې نه وژنې؟ په همدې چېغو کې وم چې

یو روږدی زما کوټې ته را داخل شو او ویې ویل: کومه خبره نه ده نادري صیب! زه لږ شیشه لرم جوړه یې وهوو.

ومې ویل: سمه ده وهو یې، کله مو چې شیشه ووهله ویې ویل: نادري صیب، یوه روسۍ برچه لرم تاته مې راوړې ده، دا واخله دواړه ځو هرځای چې روږدی ناست و مواد پلورونکي زه نیسم، ته چې یوازې له برچې سره ولاړ اوسې میتیازې یې ځي.

ومې ویل: سمه ده حرکت مو وکړ، د شاه دو شمشېره د لارې په اوږدو کې دوه روږدي ناست وو، هغه چې ورنږدې شو، ویې ویل: هرڅه چې لری را ویې باسئ، که نه شاه نستوه مو په برچه باندې ټوټه ټوټه کوي.

یو روږدی کس مسکی شو، ویې ویل: «شاه نستوه که پرته له برچې هم وغواړي زموږ سر ترې ځار.!»

له شرمه مې برچه له لاس ښخه پرېوته، د روږدي برچه مې ورکړه، نور هېڅ ډول کار ښه نه راته ښکارېده، د کورونا قرنطینونه پیل شوي وو، وضعیت ډېر منجمد او خراب شوی و او زما وضعیت هم تردې اندازې خراب شوی و، چې نور سل فیصده له ژوند کولو ښخه زړه توری وم، لوږې او خمار دومره ډنگر کړی وم چې یوه وراسته شوي اسلکېټ ته ورته وم، حیران پاتې وم چې څه وکړم؟! خمار مې له حده ډېر مخ په لوړه روان و، د فرخندې له منار سره د سپین ږیري «کاکا پېچکش» خواته ور روان شوم، وروورسېدم، له څنگ سره یې کښېناستم، په همدې وخت کې مې یو اشنا غږ تر غوږو شو، چیغې یې وهلې؛ نستوه! نستوه!.

له کاکا پېچکش سره تر یوه څادر لاندې ناست وم، سر مې پورته کړ، گورم چې خپل ماما مې و، «ماما ذاکر مې چې په کاناډا کې ژوند کوي.» اوس راغلی و کابل ته زه یې چې ولیدم، ویې ویل: نستوه! هغه مه کوه چې وتښتې، زه ستا ماما یم ذاکر!!! راځه له ماسره لاړ شه کورته.

په زړه کې مې وویل: غوره ده چې ماما ذاکر ته مې ځان تسلیم کړم، له ده سره یې زامن او زما بل ماما هم وو، دوی ټول په ما پسې راغلي وو... په بېړه یې یوه ټکسي ونیوله او زه یې د خپلې نیا کورته روان کړم؛ مخکې تردې چې کورته لاړ شوو، لومړی یې یوه حمام ته بوتلم او حمام مې وکړ؛ پاکې جامې یې راکړې، هغه مې واغوستې، د انې کورته مې راغلوو، غرمه وه، پلو یې پوخ کړی و، له څو میاشتو وروسته لومړی ځل و چې غوښه خورم، پلو مې چې وخوړه، یوې خونې ته یې بوتلم او ارام ویده شوم.

له خوب څخه چې پاڅېدم، ماما ذاکر مې څنگ ته راغی، راته ویې ویل: نستوه! زه له کاناډا څخه ستا په خاطر راغلی یم، څو وکولای شم چې له نشه یي توکو دې لاس په سر کړم، روغتون ته دې نه بیایم، په همدې کور کې دا مردار مواد پرېږده.

ځواب مې ورکړ: سمه ده!

ویې ویل: ما یوه اندازه مواد درته راوړي دي، لږ لږ یې وهه او بالاخره یې پرېږده.

ورته ومې ویل: سمه ده حتمًا ذاکر ماما!!!

وروسته مې لږ شیشه وڅکوله او لږ یې رابیدار کړم؛ څو ورځې د ماما ذاکر سره پاتې شوم، ماما ذاکر ته مې وویل اجازه راکړه چې خپل کورته لاړ

شم، څلور میاشتې کېږي چې نه یم تللی، ماما مې راسره ومنله ډېر ټینګار یې وکړ او قسم یې راکړ، چې بل ځای ته لاړ نه شم او سیخ خپل کورته لاړ شم، ما ورته وویل: په سترګو، حتمًا خپل کورته ځم، ان شاءالله بیا تاسو نه ناهیلي کوم، نور زه هم له دې بدبختیو په تنګ شوی یم، غواړم له سره ښه ژوند پیل کړم، دا خبرې مې ټولې ورته وکړه، بیا مې ماما له کوټې څخه بهر ته و ووت، بېرته راغی، راته ویې ویل: څو چې ته نه یې روغ شوی زه له هېواده بهر ته نه ځم، همدلته پاتې کېږم، که همداسې لاړ شم، بیا به ټول وخت ستا په اړه تشویشي وم، نه شم کولای ارام واوسم.

بالاخره یې یوه ورځ له ځان سره ونیولم او بیا یې خپل کورته بوتلم؛ د شپې مې د ماماګانو څو زامن هم موجود وو، ټول په یوه کوټه کې راغونډ وو، وروسته مې ماما ذاکر په خبرو پیل وکړ، نستوه جانه! پلار دې نږدې اویا کلن دی او له دې اویا کلن پلار پرته بله هېڅوک ستاسو په کور کې نه شته، الله دې پلار جان ته اوږد عمر ور په برخه کړه، خو که بیا هم مړ شي، ستاسو د کورنۍ سرپرستي به څوک کوي؟

فحشا ته به مخه وکړي...

کله یې چې دا خبره راته وکړه، پاڅېدم، ماما ذاکر مې وښکنځه، ډېرې بدې خبرې مې ورته وکړې، له کور څخه یې ووتلم او بېرته د جوی شیر پله ته راغلم؛ څو ورځې نه وې تېرې شوې چې بل ماما مې «محمد هاشم» راغی، ما ته یې وویل: راځه چې څو کورته، ورسره روان شوم، له پینځو میاشتو وروسته یې زه بیا خپل کورته بوتلم، راته ویې ویل: دوه درې شپې په کور کې تېرې کړه، بیا دې د تداوۍ په موخه روغتون ته بیا یم، خو ما یوه شپه په کور کې تېره کړه، وروسته مې خپلې مور ته بهانې جوړې کړې،

دوکه مې ورکړه او بېرته پل سوخته ته په تېښته بريالی شوم، دلته مې يو څه وخت تېر کړ، بيا درېيم ځلي د جوی شير پله ته راغلم، هاشم ماما مې چې د هېواد په شمال کې يې دنده درلوده، په رخصتۍ راغلی و، اوس يې رخصتي پوره شوې وه، بدخشان ته تللی و، ذاکر ماما مې بېرته کاناډا ته لاړ، ځکه هغوی دې پايلې ته رسېدلي وو، چې نستوه نور نه جوړېږي، هغه مو نور له لاسه ورکړ.

دوه مياشتې تېرې شوې او ما دغه وخت د خپل ژوند سختې ورځې تېرولې، چې يوه ورځ مې «هاشم ماما» بيا پيدا شو، ويې ويل: نستوه راځه چې زموږ کورته لاړ شوو، مواد هم درته اخلم، له هغو هم کار واخله، خو يو څه خبرې به هم وکړو.

ورته ومې ويل: سمه ده، پيسې راکړه چې مواد واخلم.

پينځه سوه افغانۍ يې راکړې هغه مې واخيستې او تېښتې ته مې پر شتون ترجيح ورکړه... پينځه سوه افغانۍ د سترګو په رپ کې خلاصې شوې، يو سهار ويده وم، چې هاشم ماما د جوی شير پله ته زما خواته راغی او ويې ويل: «نستوه! زه د وروستي ځل او وروستۍ خبرې له پاره تاته راغلی يم، ماته ووايه چې په همدې ځای کې پاتې کېږې او که غواړې وژغورل شې؟»

ورته ومې ويل: ماته وخت راکړه چې فکر وکړم!

راته ويې ويل: سمه ده زه وخت درکوم، خپله پرېکړه دې وکړه.

ورته ومې ویل: «غواړم چې مواد پرېږدم، خو! پیسې راکړه چې نن نښه ډېره شیشه اخلم او تر وروستۍ کچې یې څکوم او سبا «روغتون» ته درسره ځم.»

زر افغانۍ یې راکړې، په دې مې شیشه او د خوړو مواد واخیستل، هر روږدی به چې راتله، شیشه او د خوړن توکي به مې ورکول، سبا سهار نهه بجې هاشم ماما راغی، زه یې حمام ته بوتلم او له هغه ځای نه یې خپل کورته روان کړم، راته ویې ویل: «نن شپه زموږ په کور کې واوسه، سبا به ځو روغتون ته، بستر کوم دې.»

د هاشم ماما زوی «بهمن شهي» چې فولبرایټر و، ډېر با استعداده ځوان و، هغه هم همدا خبره وکړه، چې موږ باید فنېکس روغتون ته لاړ شوو، شپه تېره شوه، سهار زه، هاشم ماما او مشر زوی یې بهمن شهي د فنېکس په لور روان شوو، کله چې فنېکس ته د ننه شولو، له رواني اړخه ډېر ناآرامه وم، خو ټولنیزو کار کوونکو ته مې له ښکنځلو او بدو ویلو پرته په پرلپسې ډول ویل: بهمنه! تاسو ټول هڅه کوئ چې زه ارامه شم، زما موخه دا وه چې زه دوی ته وښیم، چې زه هم غواړم چې روغ شم او دلته په خپل زړه بستر شم، څو دوی ډاډمن شي او زما په نیت شک ونه کړي.

## د دغه کتاب دویمه نیمه برخه

د افغانستان د عامې روغتیا وزارت هڅاند او اتل وزیر ډاکتر وحید مجروح ته د هغه خدمتونو او ملاتړ په پار چې روږدیتوب ته د بیا نه گرځېدو په پار یې زما له پاره په دغه وزارت کې د کار زمینه برابره کړه، ډېره مننه کوم، ده دا کار ځکه وکړ څو خلک پوه شي، چې که روږدی روغ شي، نو کولای شي، خپل ځان او ټولنې ته گټور واقع شي او خدمت وکړي.

خپل هڅاند او ځوان ملگري ته د لا بریا او پرمختگ هیله کوم.

په خورا درناوي نستوه نادري

# له دوزخ څخه راستنېدل

د ژمي هغه سړه شپه چې هېڅکله مې نه هېرېږي چې د (Finix) په B بلاک او نهمه شمېره کوټه کې مې د بې خوابۍ له لاسه چیغې وهلې، په نهمه شمېره کوټه کې اتیا تنه ناروغان موجود وو، ټول له یوه درده کړېدل، زما سترګې هم د ډېر درد او لوږې له امله پټې شوې وې، په یوه دوه پوړیزه کټ کې بې اختیاره ویده شوی وم، د لومړي پوړ ناروغ د ډېر درد له امله «زګېروي» کول، په همدې زګېرویو کې لټ په لټ اوښته، ما داسې احساس وکړ چې ډېره خطرناکه زلزله وه، په همدې خاطر په ژر له خپل ځای څخه پاڅېدم.

برېښنا ټوله قطع شوې وه، غوښتل مې لاړ شم تشناب ته، څو تنه نور هم راسره ملګري شول، له دهلېز څخه ووتلو، هوا ډېره سړه وه، واوره هم اورېده، په چاپېریال کې د بخاریو د دود څپه خوره وه، دا چې روغتون ته نږدې د کابل هوایي ډګر واقع و نو د طیارو شنه، سپین او سره څراغونه مې تر سترګو کېدل، په زړه کې مې وویل څومره خوشبخته خلک دي، دوی له اوږده سفر وروسته کابل ته را ګرځېدلي دي او ټول به ډک لاس خپلو کورونو ته ځي، خپلو کوچنیو لوڼو ته یې شاید ښکلې نانځکې او زامنو ته به یې ښایسته موټرک اخیستي وي...

د خپل ځواک، توان او تور روزګار په فکر کې ډوب شوم، چې شپږ میاشتې پرته له کومې خبرې له کور څخه ایستل شوی وم، د خپلې مېرمنې او د هغې د مسکا په فکر کې شوم، احساس مې کاوه چې همدا اوس ما ګوري او سپارښتنې راته کوي، د ګارد غوسه ناک غږ زما فکر بدل

کړ: «هغه ویل: اې، اې! مرگ غواړې که خنگه تر واوره لاندې ولاړ یې او سر دې اسمان ته شخ نیولی دی؟

الوتکې شمېرې که دې عقل له لاسه ورکړی دی؟

په همدې وخت کې مې هغه ملگري چې د پنجشیر واټ په نوم مې پېژنده راته وویل: نستوه! څه چې د ننه لاړ شوو، جامې دې لندې شوې دي.

غوښتل مې خبره یې ومنم او حرکت وکړم، خو د واورې اورېدو له امله مې سترگو لید له لاسه ورکړی و، د پنجشیر واټ لاس مې ونیوه، ځان بشپړ روند راته ښکاره شو، خپل ځان ته مې زړه بد شو، شاید باور ونه کړی شپږ میاشتې پرلپسې په هرو څلورویشتو ساعتونو کې ما یوازې یوه ډوډۍ خوړله، د ویټامین، پروټین او ... نه موجودیت له امله مې وجود ډېر کړېده او بدبخته سترگې مې له لیدو او کتو لوېدلې وې، په زړه کې مې وویل کومه خبره نه ده، کله چې له روغتون څخه ووتم، البته په خیال کې مې دا خبرې له ځان سره کولې! که چېرته زه د گازرو څو گیلاسه اوبه وڅښم او لږ مېوه وخورم، امکان لري سترگې مې ښې شي او د لیدو ځواک مې پیاوړی شي، په داسې حال کې چې په سترگو کې مې د ناهیلۍ اوښکو موجونه وهل، پنجشېر واټ له لاس نیولی وم، څو په اوږده دهلېز کې ما خپلې کوټې ته ورسوي.

نه پوهېږم تاسو څنگه؟ اما زه یو عمر کېږي چې دا تجربه لرم، دا ظلم مې په خپل حق کې ترسره کړی دی او له بې غږه ژړا سره عادت شوی یم، دغه کار دردونکی، غمجن او په ورته وخت کې سپک دی، غږ دې نه پورته

کېږي، خو د اوښکو څپې دې له سترګې رارواني وي او بانه دې لندوي. کله چې کوټې ته د ننه شوم، يو څه ګرم شوم او د عطرو ښه بوی مې دماغ ته راورسېده، بالاخره په يوه کوټه کې اتيا کسان بستر وو، زه هم د خوب په تخت اوږد وغځېدم.

غوښتل مې ويده شم يا په بهتره توګه ووايم په جبر سره مې غوښتل ځان ويده کړم، په خيرنه او له سپږو ډکه بړستن کې به دې داسې احساس کاوه چې د زرګونو بدبختو، ستومانيو او روږدو کسانو د اوښکو بوی ته دې په خپل وجود کې ځای ورکړی دی، خپل ځان مې پکې پټ کړ، پر نمناکه بالښت مې سر کېښود، هغه نمناکه بالښت چې د زرګونه روږدو کسانو اوښکې په کې جزب شوې وې، داسې تصور به دې کاوه چې دا بالښت د روږدو کسانو په غمجن ارشيف بدل شوی دی، هغه روږدي چې زما په څېر د خپلو دردونو او کړاونو له امله بې غږه ژړېدلي و، د هغه کسانو د غم، ژړا او بل هر هغه څه کيسه چې دوی له لاسه ورکړي و، په همدې حال کې مې بيا پر خپلو نمناکه سترګو فشار راوړ څو خوب راشي، خو! داخل يوه وحشتناک او ډاروونکي خيز د ويده کېدو اجازه نه راکوله: سپږې...

هغه سپږې چې حس دې کاوه د نشه يي موادو په مافيايي ډلې پورې تړلې او يا هغه سرتېري دي چې د روږدو زر بستريز روغتون د اداري فساد څخه يې پرده پورته کړې ده او د ربودو د څورولو له پاره آن ترغاښو پورې مسلح شوې دي.

په جامو کې سپږو د روږدو له غمجن او دردونکي تاريخ څخه د ويلو له پاره خبرې درلودې، سپږې انسان په انسان ګرځېدلې او د ډېری روږدو بې وينې بدنونه يې وينې کړي و او د ډېری روږدو وينې يې په خپل بطن کې

درلودې، د روږدو زر بستريز روغتون له مديرانو سره يې کره ورته والى درلود، د روږدو له وينو به لويې شوې، ښې مړې، وينه څښونکې، ظالمې او له خداى څخه نه وېرېدونکې وې، بيا هم وايم چې سپږو د روغتون له مديرانو سره بشپړ ورته والى درلود.

کله کله به مې فکر کاوه چې سپږې هم د نشه يي توکو د غوښتنې کمولو ملي پروګرام د خيانت کوونکو په څېر دي چې خپله يې، مېرمنې يې، لوڼې يې او زومان يې ټول د روغتون د کار کوونکو په څېر لوړ معاشونه اخلي/الري او د بېچاره روږدو کسانو په وينو باندې خپل ځان تغذيه کوي.

وروسته مې ځان په ناولې ټوټه کې پټ کړ او لږ ارام شوم، د ناروغانو وحشتناک زګېروي او چيغې مې اورېدلې چې ويل يې، اې خدايه پښې مې! اې خدايه ملا مې! اې خداى بدن مې!.

د همدې ډاروونکو ژړا وو او فريادونو په مينځ کې په ناڅاپي ډول ارامه خوب راباندې راغى، زه چې کله ماشوم وم، پلار مې په درېيم مکرويانو کې يوه کور په کرايه نيولى و، دا کور مې په خوب ليده، په خوب کې يو توپير دا و چې زه ماشوم نه وم، اوس لوى شوى وم او له بده مرغه چې يو پلار وم، خپله نيايش لورکۍ مې په خوب ليده، چې ډېر دردوونکى، ځوروونکى او نارامه کوونکى حالت وي، نيايش لور مې د هماغه اپارتمان له برنډې رانږدې شي او په لړزوونکي غږ راته وايي: «ته ښه پلار نه يې.»

دغه غږونه لکه د سينمايي فلش فاروردونو په څېر په غوږونو ولګېدل، ته ښه پلار نه يې، نه يې، نه يې...همدې کلمو له خوب څخه راويښ کړم، له ما مخکې څو تنه نور هم ويښ شوي و د کوټې بخارۍ يې هم روښانه کړې

وه، د بخارۍ د لرګیو د ډېر دود له امله د خوب دویم پوړ چپرکټونه هېڅ نه ښکارېدل، داسې فکر به دې کاوه چې تورو وریځو د غرونو پر څوکو د غم او درد څپې په څېر سیوری غوړولی و او شاید د هغه خطرناک اورښت په انتظار و چې دردمن سېلاب یې له ځان سره لېږدوه.

د چپر کټونو د دویم پوړ ناروغان چې سرونه یې وربانده خرېیلي وو کرار کرار له خوب نه را پاڅېدل او وروسته یو په بل پسې په ډېر خپګان چمتو کېدل، څو زړه تنګې او دردوونکې ورځ پای ته ورسوي. غوښتل مې چې پاڅېږم خو د ورځې سختۍ او خپګانونه مې له وړاندې حس کول.

په زړه کې مې وویل: ګرانې نیایش لورې! پوهېږم چې ستا ماشومانه او معصومې پوښتنې څومره سخت ځوابونه لري، پوهېږم چې مور دې د دې پوښتنو پروړاندې کمه راځي، نه پوهېږم چې څه درته ووایم، ته شاید په دې پوهه نه شې چې روږدي کېدل یانې څه؟ شاید یو بد پلار... هو یو بد پلار، یانې یو روږدی پلار، یو بد پلار یانې یو روږدی چې هېڅ عاید نه لري، یو ناتوانه پلار، یو بد پلار یانې زه، یانې نستوه نادري چې خپل اووه کاله عمر یې کله تر پلونو لاندې او کله هم د روږدو د درملنې په روغتونونو کې تېر کړي دي، یو بد پلار یانې زه، هو یانې زه، یانې زه، یانې زه، دغه ډول مې خپلې بدبختۍ شمېرلې او سمدستي مې اوښکې راتللې، یو سپین ږیری کاکا چې زما ترڅنګ و، نا څاپي یې پوښتنه وکړه: اې هلکه، څه خبره ده؟ ولې ژاړې تېر له دې ژونده، دا ژوند همداسې دی، کله په خوشحالۍ او کله هم په غمجنو حالاتو کې تېرېږي، نو درانه او کلک خلک هغه دي چې په بدمرغۍ او غمجنو حالاتو کې ځان کنټرول کړي، مه ژاړه ټول خلک

دې دلته وینې غم ځپلی او د غم ډک ژوند لري څه باید وکړو؟... پرته له صبر بله هېڅ لاره نه شته...

له خپل چپرکټ څخه د سپین ږیري کاکا څنګ ته نږدې شوم، خپل ځان مې کنټرول نه شوی کړای، ډېر مې وژړل تر دې اندازې چې اوښکو مې اوږې هم لندې کړې وې، چې وروسته مې د کاکا د تودو اوښکو څاڅکي په خپل سر باندې حس کړل، خپلې شاوخوا ته مې وکتل چې ډېر روږدي د خپلو چپرکټونو پر سر زما په څېر لپې لپې اوښکې تویوي، کاکا سوړ حوصلې وایسته او ویې ویل: " اې زویه! اې زویه! دا هرڅه ټول زموږ له لاسه دي ځکه له داسې یوه تیاره برخلیک سره مخامخ یوو."

په همدې ژړوونکي حالت کې وم، چې په ناڅاپي توګه یوه غږ زموږ فضاء ماته کړه، چې ویل یې: په نهمه شمېره کوټه کې پاتې شه، ځکه چې د سهار چای څښلو وخت دی.

څو ناروغان لرې!؟

د کوټې له څنډې د مسؤل کس غږ راووته چې وایې: اتیا کسان!)

وروسته د برونزو کارتونه موږ ته راکړل شول چې د هماغه برونزي کارتونو له مخې موږ ته ډوډۍ راکول کېده، د یاد کارت په اخیستلو سره باید د یوې ډېرې څواکمنې وزن لوبې له پاره چمتو کېدې شاوخوا دوه تر درې سوه تنه به د خوړنځي په مخکې درېدلو او وروسته به ټېل ما ټېل پیل شو، په شاوخوا نیم ساعت کې توانېدلی شوې چې خوړنځي ته ځان د ننه کړې، همدا چې خوړنځي ته د ننه کېدې سم لاسي به رضا کارانو درته سپین رنګې اوبه چې شاید هغوی شېدې نومولې له یوې دانې سړې ډوډۍ سره

یې درته راوړل، خوړنځي ته به چې د ننه شوې، له ګردجونو کړکیو به خوړنځي ته لمر لوېده، خوړنځی به د لمر په وړانګو سره روښانه کېده، په ټولو بدبخته روږدو به لمر راتله، د روږدو بې وېښتو سرونو به د لمر د وړانګو پروړاندې ځانګړې ځلا پیدا کوله.

هوا دومره سړه وه چې د دېو په څېر یې سینه د خوړنځي د کړکیو په ښیښو پورې نیښتې وه او په شدت یې هغه وخت سړی پوهېږي کله چې روږدی شي، بیا پوهېږي چې څومره دردوونکی، سوځوونکی او ورکوونکی حالت دی.

ژمی را روان و، په سړه هوا، سړو کټلو، سړو اړیکو، سړو انسانانو او د زړګونو تنو سرې تجمع سره د روږدو د درملنې زر بستریز روغتون کې ژوند دوام درلود، ټولو روږدو د بندیانو په څېر سرې ورځې سرې سرې شمېرلې، وخت دومره سخت تېرېده، احساس به دې کاوه چې ساعت هم یخ وهلی دی، داسې تصور به دې کاوه چې د ساعت ثانیه ګر سړې هوا له ګرځېدو درولی دی، کله چې له کوټې نه وتلم د زر بستریز روغتون ټوله محوطه ناوړه غبار پوښلې وه، ګرد د روږدو نفس داسې بندولو لکه د ډیزلي موټر دود چې سترګې سوځوي، لوږې انسان دومره کړوه لکه له حده پورته تګ، دا وخت به د طالبانو د تېرې دورې لوږه او سختی یاد ته درتللې.

نږدې غرمه وه او لوږه هم دومره زیاته وه چې حس به مو کاوه چې له پوښتیو ښکته د وجود د پورته کولو له پاره نور هېڅ شیمه او انرژی نه شته، یوه ملګري راته وویل: کله چې لوږه له حده ډېرېده نو د ناجو له ونې پاڼې وشکوه او ویې خوره، څو ورځې مې همدا کار وکړ، سمه ده چې تر یو حده

به مې د مړښت احساس وکړ، خو د ناجو تریخ خوند د (Dry Jain) د شرابو یادونو ته بېولم، چې ډېر بد بویه، خوا بدوونکی او وحشتناک و.

له پینځلس ورځو وروسته به د روږدي بدن داسې پاک او وږی شو، چې د نهنګ په څېر به یې خوله خلاص کړه او په اشتها به راغی، روږدي د هغه بارداره مېرمنو په څېر وو چې کله به یې د زړه یخ والي په پار ځلوبی زړه ته کېدې، کله کلچې، کله غوړه ډوډی او کله هم قروت چې هېڅ شتون یې نه درلود او پیدا کول یې ناممکن وو.

په خوړنځي کې به یې ناروغانو ته دری وخته خواړه ورکول، لومړی برخه، دویمه برخه او دریېیمه برخه، دردوونکې دا وه چې تاکل شوې وه چې د یوې ورځې په دریېیمه برخه کې دې یوه ناروغ ته خواړه ورکړل شي، هره ورځ مو د ډوډی له پاره شېبې شمېرلې، وخت او د وخت له تېرېدو یې زړه را تور کړی و، سرې ورځې د سړو لښتو په څېر هره ورځ پر موږ تېرېدلې او موږ په یخه هوا کې د ژمي سړې ورځې د یوې پیالې ګرم چایو او یوې کاسې ګرمې ډوډی په انتظار تېرولې...

یوه ورځ د خوړنځي په درېیمه برخه کې زموږ د ډوډی نوبت و، دومره وږی شوی وم چې نور مې لوږه نه شوای زغملی، پر متیازو ناولې او له سپږو ډکې جامې چې شاید وړاندې له ما یې هم د زرګونو نورو روږدو درد او بدبختی تجربه کړې وې زما په تن وې، د متیازو بوی یې دومره تېز و فکر مې کاوه چې له ما نه مخکې څو تنه ستومانه، ډنګر بدنه او کم خونه روږدي د خپل روږدیتوب پر وخت کې د ډېر خمار او درد له امله میتازې په خپلو پرتړونو کې کړې دي ورباندې وچې شوې دي او وروسته جامې له فرد فرد نه همداسې مسلسلې زما په برخه شوې دي، له تنې پورته ساحه چې د

روږدو د کانګو له امله داغ داغ شوې وه، خو لنډه دا چې ټولې مردارې وې، همدا جامې زما په تن وې، حس مې کاوه چې د اشغال دانۍ په یو سطل بدل شوی یم، داسې تصور مې کاوه چې کله په لاره ځم زما له څنګه تېرېدونکي کسان به حس کوي چې تشناب پاکوونکی موټر یې له څنګ تېرېږي، شرمېدلم، پرته له دې چې پوه شم ټول زما په څېر له همدې ډول جامو او خیرو سره مخ دي، شپېې مې شمېرلې او درې ډېر نږدې ملګري مې درلودل: اسد، فرید او مکرم.

د لوږې پر وخت اسد کیسه کوله، زه د پاکستانۍ کړایي غوره آشپز یم، وروسته مې لیدل، چې د پاکستانۍ کړایي د نوم له اخیستو سره د فرید او مکرم له «خولو» مردار لعابونه رابهر شول، فرید چیغې وهلې چې نور بس کړه... داسې کیسې مه کوه، ځکه چې موږ یې د اورېدو توان نه لرو.

وچه ډوډۍ ناوخته راورسېده او موږ د خوړنځي په درېیم نوبت کې و، کله چې د خوړنځي دویم نوبت پیل شو فکر مې کاوه چې زه به هغه ریکارډ لرونکی یم چې د لوږې له لاسه مرم او زما قبر به لومړنی قبر وي، په خپل چپرکټ باندې د بې ساه مړي په څېر پروت وم چې یوه هیله بښونکې غږ په هوښ کړم: جعفر، جعفر کار کوونکیه، د نهمې شمېرې کوټې هلکان د خوړنځي له پاره چمتو کړه، چې نوبت یې رارسېدلی دی.

د خوړو په خاطر داسې حالت ته رسېدلي وو لکه مجنون د لیلا په غم کې، له دې خبرې سره داسې وغوړېدو لکه دې ورکې لیلا د پیدا کېدو زېرې چې راباندې شوی وي.

بیا هم د تېر په څېر د برونزي کارتونو په شمېرلو دوه، څلور، شپږ، اته تر اتیاوو پورې حساب پیل شو او وروسته مو د وزن لوبې د اسونو په څېر ځانونه خطا کول، خو توپیر دا و چې د اسونه او اس ځغلوونکي د لوبې په میدان کې غښتلي وي، مگر موږ سخت کمزوري او بې انرژۍ وو، تېل ما تېل او کش گیر به مو پیل کړ او همداسې په چیغو به خوړنځي ته داخلېدلو، وچه سره ډوډۍ، وچې وریجې او زموږ وچې گېډې... موږ درې ملگري به همېشه نږدې سره کښېناستلوو.

په ډوډۍ خوړلو مو پیل وکړ، په آخر کې مې یوه لمړۍ ډوډۍ په لاس کې راواخیسته، له همدې لمړۍ سره را روان شوم، کله چې له خوړنځي څخه رابهر کېدلم، همدا لمړۍ چې غوښتل مې خولې ته یې واچوم او ویې خورم، په ناڅاپي ډول د یوه خدمت گار لاس زما خولې ته راغی، راته ویې ویل: واچوه دا ډوډۍ همدلته، اجازه نه شته چې خواړه د باندې وباسې...

په داسې حال کې چې غوښتل مې خپله ژوول شوې مړۍ گېډې ته ننکته کړم، همدا وخت یې برید راباندې وکړ، په ناڅاپي ډول مې دوه کلک سوکان پر سر وواهه، له دې سره نورو رضا کارانو پرما حمله وکړه، څو ما وډبوي، د خلکو په گڼه گوڼه کې مې وکولای شول چې د دوی له منگولو څخه ځان وژغورم.

په زړه کې مې وویل: څه وحشي مجرم یم، چې د خوړنځي له مېز څخه د باندې د ډوډۍ خوړلو حق نه لرم، د ناروغانو په گڼه گوڼه کې له خوړنځي ننکته راغلم د روغتون یو کار کوونکی چې «عینکې» یې په سترگو وې، چیغه یې راباندې وکړه، هې ودرېږه! ته د هېرئینو نشې نه یې کمزوی کړی، چې ځنگه رانږدې شو، پرمخ یې په څاپړه ووهلم، دا وخت مې د یوازېتوب

احساس وکړ، خو له نېکه مرغه څو کسانو سپین ږیرو غږ ورباندې وکړ، چې مه یې وهئ.

په لوړ غږ مې وویل: ایا د خپلې ډوډۍ خوړل هم جرم دی؟ غوښتل یې چې بله څاپړ مې هم ووهي، په همدې کې یو قوي لاس زما لاس ته راغی، زه یې ابخوا ته ټېله کړم او د هغه کس په سینه یې په ډېر فشار سره وار وکړ، له سترګو مې د اوښکو مرۍ څپې رارواني وې او زړه مې ډېر سخت ډک و، د بې قانونۍ په نړۍ کې چې یو څوک ستا دفاع وکړي او په یوه قوي لاس ظالم ته سزا ورکړي، دا بیا بېل خوند لري، د یوه روږدي له پاره به داسې صحنه ولې په زړه پورې او خوږه نه وي چې یو مغرور انسان مخابره په لاس کې پرتا باندې برید وکړي او یو څوک پیدا شي، داسې یې وځپي چې په خپل عمل باندې یې پښېمانه کړي؟... هغه قوي لاس چې زما لاس یې نیولی و، ومې لیده چې د یوه ښه هیکل لرونکي ځوان و، د دې ځوان پرتن د پولیسو جامې وې، تومانچه او مخابره یې ترځنګ وو او په ټوله مانا نظامي و.

د آسمان خواته مې وکتل، په ډېر ژور فکر کې تللی وم، داسې غږ مې حس کړ چې وایي: نستوه! خدای دې څومره مهربانه دی، په زړه کې مې وویل: هو هغه خدای لکه څنګه یې چې ویلي دي چې «په لوږه کې ډوډۍ او په وېره کې یې خوندیتوب راکړی.»

ځوان پولیس په پرېکنده غږ سره برید کوونکي کس ته وویل: پوهېږې دا څوک دی؟ هغه خبریال دی چې یو عمر یې د حقایقو د بیانولو په پار مبارزه کړې ده، که ووایو چې نوموړی یو خبریال نه دی، بالاخره یو ناروغ خو دی؛ بیا ته څه حق لرې چې دوی ووهې؟

برید کوونکی کس په داسې حال کې چې نشه یې له سره الوتې وه. د هغې بزې په څېر چې له زمري څخه وېرېدلې وي په خپل ځای ولاړ و. د پولیسو افسر وویل: زه قوماندان ذبیح نومېږم، قوماندان واحد چې د زر بستر روغتون د پولیسو د سرتېرو مسئول و راته وویل: راځه له ماسره. ټولو روږدو زما خواته کتل چې څومره اغېزمن شخصیت شوی یم، په داسې حال کې چې لاس مې د هغه په لاس کې و راته ویې ویل: بیا هم روږدی شوی یې؟

زړه مې ډېر ډک او ستونی مې ونیول شو؛ له خپلو جامو نه شرمېدم، ځکه ککړې او بد بویه وې، نظامي ځای ته چې نږدې کېدم، همدلته مې د ده په سترګو کې لویه مهرباني ولیده او په حرکتونو کې یې ځواکمنه مېړانه لیدل کېده، له سرتېرو څخه یې یو تن مېوه راوړه او ویې ویل: زما په پیاله کې نستوه ته چای واچوئ، په ډېره مهربانۍ او زړه سواندۍ سره یې خپل مخ زما خواته راوګرځاوه او ویې ویل: تا په دې دېرش مېلیوني لوی هېواد کې ډېر خدمتونه کړي دي او د دې دېرش مېلیونه کسانو په مینځ کې داسې کسان شته چې له تاسره مینه لري، په دې شرط چې روغ شې او روغ پاتې شې، وروسته یې د اغوستلو له پاره یوه جوړه پاکې جامې او یو جوړ ښه بوټ راوړل، د پاکو جامو بوی مې چې په دماغ ولګېده په زړه کې مې وویل: اوس دې د زباله دانیو له «جامو» څخه نجات پیدا کړ.

جامې مې واغوستلې او وروسته یې بېرته خپلې کوټې ته راوستلم، له مننې پرته مې د هغه له پاره نور څه نه شوی کولای، له خپل خالق څخه ډېر شکر ګذار وم، چې هغه یې په دې ګډوډ حالت کې زما له پاره د ژغورنې د یوې پرښتې په څېر راوسته، د نجات هغه پرښته چې ځوانمردي یې په

عمل کې راته ثابته کړه، خپلې کوټې ته چې ورسېدم، دوه دانې منې مې له خپلو هماغه صمیمي ملګرو سره تقسیم کړې، ومو خوړې او په تولیزه توګه مو قوماندان ته د دعا لاسونه لپه کړل.

د روږدیتوب او درملنې په وخت کې دا لومړی کس و چې د بدبختیو او دردونو په اوج کې یې له ما څخه دفاع کوله او ماته یې د مېرانې ویاړ را وبانښه، په زړه کې مې وویل کومه ورځ چې له روغتون بهر شوم او روغ شوم بېرته راځم او د قوماندان لاسونه ښکلوم. دا د الله تعالی څومره لویه مهرباني ده چې په مرګوني او ساه اخیستونکي حالت کې یې زما د دفاع له پاره د نجات داسې پرښته رالېږي څو ما د هغو کسانو له منګولو وژغوري چې یوازې له ناروغانو سره ناوړه چلند او زور زیاتی کول یې زده دي.

شپه ډېره سړه وه او ساړه په یوه ډاروونکي ځناور اوښتي و، داسې احساس به مو کاوه چې د برچې په څېر زموږ په بدن ننوځي، لوړه پخپل وروستي حد کې وه، سړې هوا هم زموږ بدن ډېر سوځوه او موږ ناروغه روږدو د سړې هوا او لوږې له امله ساه اخیستونکې او له زړه تنګون ډکې شپې په ډېر بد حالت کې تېرولې.

نسوارو د هغه درملو په څېر زموږ د زړه تنګون شپې له منځه وړلې او موږ یې له مرګ څخه ژغورلو، یا هم په ښکاره توګه که ووایم: نسوار هغه درمل و چې کولای یې شوای د هغه ستومانه او مات شویو روږدو له زړه تنګون او له تیارې څخه ډک ژوند څخه توره پرده پورته کړي او په یوه روښانه شمع یې بدل کړي.

نسوارو ډېرى وخت د سيګرېټ تشه ښه ډکوله، يوه شپه مو نسوار خلاص وو، په ټوله کوټه کې مو وکتل، پيدا مو نه کړل، وروسته لومړي (B) بلاک ته ورسېدم، چې د چک چکو غږ مې ترغوږ شو، د ننه شولو ګورو چې يو لوړ شاوخوا اتلس کلن ځوان په ميدان کې ناځي او شاوخوا سل کسان ورته لاسونه پړه کوي، يوه کس د غوړيو په بوشکه باندې چې اوسمهال د اوبو له پاره ترې کار اخيستل کېږي دنبوره وهله او يوه بل کس هم پرمېز باندې تبله وهله او يوه بل ځوان په لوړ غږ سندره ويله:

الـه بــــــچه جانم الـه بچه

جانم فـــــدای بچه الـه بچه

جانم اوبچه تمام جانم بچه

بچه جانم، جان بچه قربان

چـــــــــشم های بچه

الـه بچـــــه جانم بچه ...)

او څو نور هلکان په ټول توان سره ګډېدل.

هغه ملګرى چې له ما سره راغلى و، ورته ومې ويل: راځه يو څو شېبې همدلته پاتې شوو، هرڅه چې دي له غم څخه به مو لږ لرې کړي او لږ به خوشاله شوو.

غږونکو دومره ښه طبعي دنبوره غږوله تا به ويل چې څه تکړه او لوى لاس دنبوره غږونکى دى، چې په خپلو جادويي ګوتو دنبوره غږوي، تبله

غړوونکی په پوره مهارت سره تبله وهله، د هغه سور او لی یې په دومره ښه ډول برابرول لکه دې تبلې ښوونکی چې تېر شوی وي، د دنبورې غړوونکي مهارت هم د ستایلو و، هلکانو هم داسې نڅا کوله لکه ټول عمر یې چې د نڅا تمرین کړی وي، د سندرو او ټپو خوند بیا بېخي بېل و...

د کوټې په وروستۍ برخه کې یو ځوان ناست و، هلک به ورنږدې شو، هغه به د خپلو لاسونو په اشارې سره نوموړی وپوهوه او وروسته به هلک بېرته میدان ته راغی، لاس او پښې به یې نڅول او د استاد زریاب د رومان په یاد چې ویل یې: گلنار و آینه افتادم که اگر آینه ی بزرگی در مقابل بچه می گذاشتی تصویرش را در آینه از پا در می اورد.

هلک ډېره ښه پیته خوله او سپینه څېره درلوده، چې تراوسه پورې یې پرمخ د ږیرې او برېتو خطونه هم نه ښکارېدل، سرې شونډې، تورې سترگې او سرې وروځې یې درلودې، چې د هر لیدونکي پام یې ځان ته اړوه، په کوټه کې شاوخوا ناستو کسانو ته مې چې وکتل، هر یوه په هره سندره کې هلک هلک هلک چیغې وهلې.

کله به چې هلک کوم یوه ته نږدې شو، په لوړ غږ سره به یې ویل: ننښه دې وویشته، اره دې کړه، اور دې واچاوه، پطرول دې کړل، درد او بلا دې په نویو راغلو ناروغانو او .....

په زړه کې مې وویل: دغه ټولې چیغې، غړونه چې پورته کېږي شاید د همجنس بازۍ وي، سربېره پردې چې کانگریټې دېوالونه دي خو بیا هم په هوا کې غږونو انعکاس کاوه او له منځه تلل لکه چې وایي: مال دار بچه

مال بچه خیلی بی جنجال بچه گل دوز است وقالین باف صاحب کمال بچه مال داربچه صاحب کمال بچه و....)

ملګري ته مې وویل څه چې څو دلته خو د نجلۍ هېڅ څرک هم نه شته او د نجلۍ له پاره کومه سندره هم نه ویل کېږي.

که څه هم د فنېکس ډاکترانو د بچه بازۍ له محفلونو څخه ډېره کرکه درلوده، خو روږدو هم په فنېکس کې له فرصت څخه ګټه پورته کوله او داسې کار به یې کاوه چې حد پرې تمام و، د ښه کېدو او رغېدو په حالت کې وم چې یوه ورځ د احمدزي په نوم یو هلک راته راغی او ویې ویل: زه غواړم چې تا د فنېکس په حمام کې د رضا کار په توګه ونیسم، څو د روږدو نومونه د حمام په کتاب کې ورسوې.

په ډېره مینه مې دا کار ومانه او ورته ومې ویل چې ترسره کوم یې، څو ورځې مې دا کار ترسره کړ احمدزی رخصت شو او زه د احمدزي په ځای د حمام مسؤل شوم، فنېکس د یوه ستر ښار په څېر دوه لویې څوکۍ درلودې چې د روږدو له پاره د خوړنځای او حمام څوکۍ وې، که کوم وخت وغواړې چې دې موقف ته ورسېږې نو دا په دې مانا ده چې ته د زرګونو کسانو له منځه ډېر ځانګړی کس یې او ما کولای شول چې دې موقف ته ورسېږم.

د حمام مسولیت وروسته زما په وجود کې یو تحول رامنځته کړ، هره ورځ سهار باید حمام ته تللی وای او د حمام له رضاکارانو سره مې باید جلسه نیولې وای، د نوي پروګرام او برنامې طرحه به مې ورکوله، چې څه کارونه

باید ترسره کړو، ځو زموږ خدمتونه ښه شي او د حمام د خدمتونو په برخه کې به هره ورځ له شلو، پنځوسو او تر سلو کسانو پورې زیاتېدل.

وروسته له دې چې زه د فنېکس د حمام مسؤل شوم، هره ورځ په اوسط ډول اووه سوه کسانو حمام کاوه، ورځې ډېرې ښې پرمخ تللې، کله به یې چې د راټولونې په پروسه کې تازه روږدي راوړل، هغوی به یا د خولې له لارې او یا هم له کومې بلې لارې په ګټه اخیستنې له ځان سره د فنېکس سیستم ته نشه یي مواد د ننه کول، چې وروسته به زما د فعالیتونو په پایله کې نیول کېدل او رئیس ته به ورسپارل کېدل.

په ټول فنېکس کې آوازه خپره شوې وه چې نستوه پرته له دې چې مواد لېرې واچوي مواد نیسي او تسلیموي یې، چې دغه بهیر کرار کرار زه د روږدو، ډاکترانو او د روغتون د کارکوونکو په مینځ کې مطرح کړم، وروسته مخکې له دې چې نوي راوستل شوي کسان خپلو کوټو ته لاړ شي، زه به له دوی سره د لسو دقیقو له پاره کښېناستم او انګېزه ورکوونکې خبرې به مې ورته کولې، څو دوی مطمئن شي او له دې ناوړه ناروغۍ څخه ځانونه وژغوري.

زما دغه کار د فنېکس معالجوي مرستیال ښاغلي کوشان ته ډېر ارزښتناک تمامېده، زه د روغتون په لومړي پوړ کې کرار کرار د روغتون لوړ رتبه لرونکو ته مطرح او مشهور کېدم، زما څلوېښت ورځې تېرې شوې، یوازینی کس چې زما پوښتنې ته روغتون ته راتله او ماته یې انګېزه او روحیه راکوله هغه زما د هاشم ماما زوی بهمن و، کومه ورځ چې رخصتېدلم، بهمن راغی او ویې ویل: «که یوه هیله او غوښتنه درڅخه وکړو چې یوه بله پینځه څلوېښت ورځنی دوره هم دلته پاتې شې منې یې؟»

ورته ومې ويل: هو! په ډېره مينه، دويمه دوره هم پاتې شوم، بالاخره سل ورځې د پای ته رسېدو په حال کې وې چې يوه ورځ د روغتون ټول لوړ رتبه مسؤلين ډېر فعال شوي وو، دوی راته وويل: ښاغلی وزير صيب راځي چې د يوه روغتون پرانيسته وکړي، ما خپل ځان د روغتون رئيس څنګ ته ورساوه او ورته ومې ويل: رئيس صب! په همدې ورځ روږدي هم رخصت کېږي، لکه چې د پرانيستې په ورځ وزير صيب هم راځي، ايا اجازه راکوی چې د روږدو په استازولۍ يو څو خبرې وکړم؟.

سربېره پردې زړه نا زړه و چې د دريځ پر سر کومه غلطه خبره ونه کړم، بالاخره يې ومنله، د پرانيستې ورځ راورسېده او دې خبرو زما برخليک بدل کړ، په داسې حال کې چې حتا نه پوهېدم د عامې روغتيا وزير څوک دی، د روغتون رئيس زه له يوه ډېر درانه، خوږ ژبي او جرار کس سره معرفي کړم، ورته ويې ويل: (ښاغلی سعيدالدين جامي د عامې روغتيا وزارت د عامه اړيکو رئيس دی) هغه له ماسره ډېر ښه چلند وکړ وروسته له يوه ځوان سره چې رحيم الله سيغاني نومېده او د روغتيا وزير په دفتر کې يې کار کاوه معرفي شوم، په پيل کې مې له هغه پوښتنه وکړه چې د روغتيا وزير څوک دی؟ ايا د هغه کوم انځور درسره شته؟ هغه په خپل مبايل کې د ښاغلي ډاکتر «وحيد مجروح» انځور راښکاره کړ، لومړی ځل و چې د هغه څېره مې وليده.

ومې ويل: ډېر ځوان دی.

ويې ويل: هو هم ځوان دی او هم ځوانې طرحې لري.

ښاغلي سيغاني راته وويل: هڅه وکړه چې له خيره روغ پاتې شې، څو د عامې روغتيا وزير صيب ته ووايو چې له روغتون څخه وروسته په روغتيا وزارت کې د کار زمينه درته برابره کړي.

په همدې موضوع باندې مو بحث کاوه چې ښاغلی ډاکتر وحيد مجروح محفل ته راورسېده، د پروگرام وياند يو تن اجتماعي کار کوونکی و او ډېره سخته ورته تمامېده چې يو روږدی راشي او د دريځ پر سر ويندويي وکړي، هغه لومړی د روغتون رئيس ته بلنه ورکړه، رئيس خپلې خبرې وکړې او وروسته يې زه دريځ ته وروبللم، کله چې دريځ ته پورته شوم د مار په څېر يې څو څو ځلې راته وويل: لنډې خبرې وکړه، لنډې خبرې وکړه، بالاخره ما هم ډېره لنډه وينا وکړه او ډېر ژر له دريځ څخه ښکته شوم، ډېر يو عجيبه حس راته پيدا شو چې په همدې حالت کې د روغتون يوه ډاکتر غږ راته وکړ: نستوه! کله مې چې وکتل، وزير زه خپل حضور ته وغوښتم، ټولو روږدو او ډاکترانو راته کتل، وزير څو لنډې خبرې راته وکړې ويې ويل: اوس چې روغ شوی يې، ته کولای شې چې د وزارت د نشه يي توکو پروړاندې د مبارزې سفير واوسې، کورته لاړشه چې پلار دې درته انتظار دی.

په دغه وخت کې چې لا مې لاس د وزير په لاس کې و، سترگې مې له اوښکو ډکې شوې، غوښتل مې چې وژاړم... اووه کاله مې پرته له ستوغو او بدو خبرو نور هېڅ هم نه وو اورېدلي، خو نن ورځ د افغانستان يو له لوړ پوړو وزيرانو څخه ماته ارزښت راکول کېده، زما له پاره يوه ډېره لويه لاسته راوړنه بلل کېده، د وزير له خبرو وروسته خپلې کوټې ته لاړم، خپله بړستن مې پرسر راکش کړه او د خپل حالت په اړه مې فکر وکړ، محفل پای ته رسېدلی و او وزير صيب زما په اړه هم خبرې کړې وې.

له محفل وروسته د ټولو لیډلوری زما پروړاندې بدلون کړی و، چې اوس وزیر یوه روږدي ته چې تېرابستونکي هم له هغه سره سم چلند نه کوي دومره ارزښت ورکړ؟... د هغه په اړه یې په خپلو خبرو کې یادونه وکړه؟...
زه له هغه محفل وروسته هم څو ورځې په روغتون کې پاتې شوم. څو زما د رخصتېدو ورځ راورسېده، د پښه یي قوم ځوانانو زما په غاړه کې یو ګل واچاوه، دوه تنو ارواح پوهانو ښاغلي مسعود باوري او ښاغلي بګراموال هماغه ورځ له ماسره ګډ انځورونه واخیستل او له یو سل اووه لسو ورځو وروسته د فنېکس له دروازې څخه بهر شوم... له بهر کېدو سره سم ګورم چې له روغتون څخه د باندې هاشم ماما او انی مې راغلي وو، دا وخت مې د ماما خوشالي او د انی ځلېدونکې سترګې ولیدې، چې هېڅ وخت به مې د دوی خوشالي له یاده ونه وځي...

کله چې له دې دروازې څخه ووتلم، بیا مې شا ته هم ونه کتل، هرڅه بدل شوي و، هیله من وم او د ژوندي پاتې کېدو احساس مې درلود، که څه هم اووه کاله وخت مې په ډېرو ستونزو او کړاوونو کې تېر کړ، خو اوس مې پرېکړه کړې وه او د خپلو ماشومانو له پاره مې د پلارتوب او ژوند تصمیم نیولی و، ډېر وخت یې ونیوه څو خپل ځان ته قناعت ورکړم او د ټولو کړاوونو سره سره د خپلې ټولنې له پاره چې په ډېره ماتېدونکي حالت کې واقع ده ګټور واقع شم او لور مې هم پرما وویاړي.

زه یې خپل کورته راوستم، خوږ او مهربانه پلار مې چې زه یې ډېر منندوی او احسانمند یم زما د ماشومانو د درس ویلو له پاره یې په کارته چهار کې یو اپارتمان نیولی و، لومړی ځل و چې خپل نوي کورته راتلم، نیرو مشر زوی مې له اپارتمان څخه را ښکته شوی و او زما راتګ ته یې د انتظار

شېبې شمېرلې، ځکه مور یې ورته ویلي و: «پلار دې راځي روغ شوی دی». ډېر اوږد وخت او لیرېوالي هغه له ماڅخه بیخي بې گانه کړی و، ډېره موده وشوه چې د خپلو ماشومانو مخونه مې نه و ښکل کړي او د هغوی له ښکلې مینې، عطرو او عاطفې چې د ژوند کولو له پاره یې هیله راکوله محروم وم.

لومړی هاشم ماما نیرو په خپل غېږ کې واخیسته ښکل یې کړ، چې وروسته یې زما خواته خپل ورک او ناروغ پلار ته په معصومه څېره راپام شو، کله مې چې ولیده خپل ځان ته کم راغلم او د وجدان له عذاب سره مخ وم زړه مې کېده چې وژاړم، ستونی مې ډک و، په غېږ کې مې واخیست، کلک کلک مې ښکل کړ او د بدن عطرناکه بوی مې یې حس کړ، لکه څرنگه چې د «کوویډ۱۹» ناروغ ډېر اکسیجن اخیستلو ته اړتیا لري، زما سره هم همداسې احساس مل و.

کله چې کورته د ننه شوم، مور مې، مېرمن مې او خور مې زما په لیدو سره ډېر احساساتي شوي وو، کورته ېبرته زما راتگ پر خپلو ماشومانو باندې زما بغض له مینځه یووړ، هر یو مې په غېږ کې ونیوه او د یوازېتوب د ترخو ورځو په خاطر مو په گډه سره وژړل، زده کړو مې له ژوند نه کډه کړې وه او په کافي اندازه د مور د لاس له پخلي او د مېرمنې له مینه ناکې غېږې څخه لرې پاتې شوی وم.

د وخت او حالاتو غوښتنه وه چې هرڅه باید له سره پیل کړم، پوهېږم چې د هغه شېبو جبران چې نه وم اصلاً ممکن نه دی، خو هوډمن وم چې د کورنی د خوښی له پاره مې له ډېرې کوچنی هڅې هم دریغ ونه کړم، درد مې گاللی و، مات شوی وم، ډېر دردونه مې چوپه خوله تر پلونو لاندې، د روغتونونو د دوه نفره چپرکټونو پرسر تېر کړي وو، کله مې چې فکر کاوه او

سترګې به مې پټې کړې نو په یاد به مې راغلل چې زر ځلې مړ شوی یم او بېرته خپل ژوند ته راګرځېدلی یم، خپل ځان او هغه شپېو ته چې ما بې ځایه تېرې کړې وې ډېر خوابدی کېدم.

ډېره سخته او د ننګ خبره ده چې یو څوک د شهرت له هغه اوج څخه دومره ژر پر ځمکه پرېوځي چې حتا شخصیت ته یې زیان ورسېږي، دا هر څوک نه شي زغملی، خو زه له هغو سختیو تېر شوی وم او پر ځان مې ویاړ کاوه، چې تر دې ځای پورې مې ځان را ورساوه او بالاخره مې لاس د ژوند روښانه ګهیځ ونیوه.

بهمن زما د ماما زوی دی، نوموړي له ماسره په ژوند کې ډېره مرسته او همکاري کړې ده، لومړی ماته یو ډېر ښه مبایل واخیست، څو وکولای شم ټولنیزو رسنیو ته سر ورښکاره کړم، له یوې مودې وروسته مې د عامې روغتیا وزیر ته یو پیغام (مېسج) ولېږه، فکر مې کاوه چې امکان لري ځواب را نه کړي خو بالاخره یې ځواب راکړ او څو ورځې وروسته یې کاري دفتر ته ورغلم، زما یې ډېر قدر او عزت وکړ.

ورته ومې ویل: له بې کارۍ څخه ډېر سخت ځورېږم، اووه کاله بې کارۍ زه ډېر مات کړی یم خو که کوم مصروفیت راته پیدا شي کولای شم بېرته متحرک شم، یوائینی ځیز چې د روږدیتوب له پرېښودو وروسته د یوه روږدي له پاره با ارزښته دی هغه د یوې بوختیا او کار پیدا کول او له بې کارۍ څخه خلاصون دی.

ښاغلي وزیر صیب زه د عامې روغتیا وزارت د عامه اړیکو دفتر کې د کار کوونکي په توګه په دنده وګومارلم، وروسته له هغه مې خپل کار پیل کړ، ښاغلي سعیدالدین جامي زما رئیس او ښاغلي توحید شکوهمند په دفتر

کې له ما څخه ډېر ښه هرکلی وکړ، ما هېڅکله هم ونه شوی کولا چې د روغتیا له وزیر ښاغلي «ډاکتر وحید مجروح» څخه د دې کار په پار مننه وکړم... ښه خبره داده چې دلته د نوموړي له ټولو مرستو مننه او قدرداني وکړم، ځکه د هغه نظر، ملاتړ او هڅونې زما ژوند بدل کړ او د دې سبب شو څو نوی ژوند پیل کړم...

همدا ژوند دی چې د سترګو په رپ کې له ستونزو او خوښیو سره تېرېږي، په هر حالت کې چې وو، موږ باید  د مثبت او ښه ژوند په لټه کې واوسو، کلونه زحمت باسو څو یو شی له موږ څخه جوړ شي خو وروسته په یوه توطیه او یا کومه خبره باندې ټول په ایرو بدلوو، چې جبران یې شاید په ژوند کې ډېر سخت وي، ایا څوک به وروسته له اعتیاد - روږدیتوب څخه خپل کورته بېرته وګرځي که نه؟ دا ترډېره د انسان په چانس او استقامت پورې اړه لري، ما خپله ولیدل چې زموږ د سترګو پروړاندې ډېری خلک د روږدیتوب له ډېر ژور درد څخه د کثافاتو او تر پلونو لاندې مرداریو کې خپل ژوند له لاسه ورکړ... ستاسو درنو لوستونکو له پاره زما خبره او پیغام دادی چې د خپل ځان او کورنیو په وړاندې مو ډېر مسؤلیت منونکی چلند وکړئ، ځکه چې کوچنۍ تېروتنه تاسو د ژوند تیارو او بدبختیو ته بیایي او عادي ژوند ته د بېرته راګرځېدو له پاره بیا شاید ډېر کم چانس ولرئ، خپل راتلونکی جوړ کړئ او پرخپل ژوند باندې مسلط واوسئ، ستاسو قصدي بې پروایي او سرغړونې کولای شي چې هرڅه درڅخه واخلي او بالاخره د دنیا او اخرت له ذلت سره مخامخ شي.

پای

نستوه نادري

# نستوه د ملگرو له نظره

## نستوه نادري

ډیر خلک له دې نوم سره د نورین تلویزیون له لارې اشنا شوي دي. زه هم ورسره له همدې ادرسه اشنا شوی یم، زه یې د دې زمانې په مقطعي شخصیت نه تم کېږم، ځکه چې ټول ورسره اشنا یاست. زه چې له نستوه سره کومه عاطفي اړیکه لرم هغه له روږدي کېدو او رغېدو وروسته اړیکه ده. یو زوی نستوه، یو پلار نستوه او بالاخره یو قهرمان نستوه!

ممکن دلیل به یې دا وي چې زه هم د یوې لور او زوی پلار یم؛ همدا راز مېرمن لرم، په همدې خاطر پوهېږم چې یوه پلار او خاوند ته د راجع مسولیتونه څومره سنگین او درانه دي.

ما چې کله د نستوه نادري (پل سوخته آخر دنیا) کتاب په کومه شپه لوست، له پیله ورسره وم، د روږدي کېدو داستان یې دومره تریخ او له کړاوونو ډک و، چې له ده سره مې یوځای ژړل... پل سوخته ته نږدې په موټر کې د لوږې او بې وسۍ له لاسه د ترمو اوښکو تاو یې زما روح ته ټکان ورکړ، په روغتون کې مې یې تر خیرنې کمپلې لاندې سلګۍ اورېدلې، ما یې د نیایش، نیرو او ورینداري په حق کې د وجدان په پنجره کې د ملامتیاوو د منلو کریغې اورېدلې، د بیا رغېدو د فولادي ارادو، ماتو او بیا ارادو قوت مې یې حس کاوه... خلاصه هر درد یې دردولی یم او بالاخره د رغېدو بریا ته مې یې د خوشالۍ اوښکې توی کړې او د نستوه کلک هوډ ته له زړه سلامي شوی یم، افرین مې ورباندې وویل.

زه د نیایش، نیرو، ورینداري او کورنۍ لپاره بیا ژوند ته راستون شوی نستوه پېژنم، هو یو قهرمان او ګل نستوه نادري!

کتاب مې نیمه شپه خلاص کړ. د حیرانتیا، خفګان، خوښۍ... نه پوهېږم څه ډول احساس مې کاوه خو په پای کې یوه خبره روښانه شوه چې افرین نستوه! ارمان مې کاوه چې ای کاش همدا اوس دلته راسره وای چې ښه کلکه غېږه مې ورکړې وای، په اوږو مې ټپولای وای او ښه ډېر مې ورته ژړلي وای، ښه ډېر شاید د بریا لپاره یې او یا شاید د هغه وخت د جبران لپاره چې هېڅوک ورسره نه وو چې اوښکې یې ور پاکې کړې وای...

عمر ستانکزي، د نستوه صیب همکار او اوس د (پل سوخته آخری دنیا) ژباړن ته مې مېسج وکړ چې غواړم نستوه صیب له نږدې ووینم. ویل یې په دواړو سترګو سبا راشئ. سبا ورغلم، تلوسه مې وه چې ژر وروړسېږم، په غېږ کې یې ونیسم او ورته ووایم: {مننه نستوه صیب}، ډېره مننه! په زړه کې مې ورته د درناوي موجونه په څپو وو، وروړسېدم، خو له بده مرغه په لید یې بریالی نه شوم، څکه نوموړی په شمشاد تلوېزیون کې مېلمه و، څینې کتابونه مې له ځان سره وړي وو، ستانکزي صیب ته مې وروسپارل - سلام، مینه او درنښت مې ورته امانت پرېښودل.

بیا خبر شوم چې زموږ ځوان او تکړه ژباړن عمر ستانکزی یې کتاب ژباړي. خوښ وم بیا قسمت وګوره چې دلته د نستوه صیب لپاره د زړه د خبرو د لیکلو فرصت راته مساعد کړای شو. د نستوه نادری په اړه ډېر څه لیکل کېدای شي، واقعاً ناممکن یې ممکن کړي او شخصاً زه ورته ډېر احترام لرم، هیله ده ځوانان د نستوه صیب هوډ د خپل ژوند الګو وګرځوي

او د ژوند سختیو ته زړه ونه غورځوي؛ سمه ده ژوند به سخت وي خو که د نستوه صیب غوندې هوډ ولرو بریا به زموږ وي.

په پای کې له محمد عمر ستانکزي مننه کوم چې یاد اثر یې په دومره کم وخت کې را پښتو کړ.

کور اباد!

مننې، مبارک او لا بریاوې

منتشر شاهي

## د ترلاسه کولو ادرسونه:

**کابل**

سروش کتابپلورنځی / ۰۷۸۵۲۰۰۲۱۲

اکسوس کتابپلورنځی /۰۷۹۸۹۸۹۶۹۶

علمي کتابپلورنځی /۰۷۷۴۰۰۰۵۸۴

بدلون کتابپلورنځی، احمدشاه بابا مېنه

۰۷۸٦۷۱۷۱۲۸/

جریر کتابپلورنځی، احمدشاه بابا مېنه /

۰۷٦۷۵۰٦۱۰٦

**کندهار**

مطالعه کتابپلورنځی /۰۷۰۰۸۹۹٦۹۰

کرور کتابپلورنځی /۰۷۰۴۱۷۸۷٦۲

صداقت کتابپلورنځی /۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴

رشاد کتابپلورنځی / ۰۷۰۰۳۳۴۷۸۴

افغان کتابپلورنځی / ۰۷۰۰۳٦۹۹۰۰

**جلال آباد**

مومند کتابپلورنځی /۰۷۸۱٦۲٦۱٦۱

میهن کتابپلورنځی / ۰۷۸۰۹۲۰۵۷۴

ختیځ کتابپلورنځی /۰۷۸۷۴۱۲۰۵۰

یارکتابپلورنځی /۰۷۹۷۱۳۱٦۱۷

دوست کتابپلورنځی /۰۷۸۰۵۱۱۱۱٦

سهار کتابپلورنځی/۰۷٦۷۰٤۸۹۰۸

**خوست**

ژوندون کتابپلورنځی / ۰۷۸۰۵۹۰۵۴۴

شیخ زاهد کتابپلورنځی / ۰۷۷۰۹۲۹۹۰۴

لیوال کتابپلورنځی / ۰۷۷۷۱۳۸۲۳۷

رڼا کتابپلورنځی / ۰۷۷٦۴۱۸۸۹۲

سباوون کتابپلورنځی /۰۷۳۱۵۵۱۹۲۸

قریشي کتابپلورنځی / ۰۷۷۱۹۵۰۳۰۱

رحیمي کتابپلورنځی / ۰۷۷۷۰۷۲۲۱۰

غازي کتابپلورنځی / ۰۷۷۷۰۰۹٦۳٦

ولوله کتابپلورنځی

**پکتیا**

روحاني بابا کتابپلورنځی / ۰۷۹۲۰۴۸۰۳۲

ماشاالله کتابپلورنځی / ۰۷۸۹٦۳۱۴۲۴

علمي کتابپلورنځی / ۰۷۷۴۰۰۰۵۸۴

دوست کتابپلورنځی / ۰۷۸۰۵۱۱۱۱٦

**لوګر**

عتیق الله نیازي کتابپلورنځی / ۰۷۷۲۲۳۳۴۹۴

**غزني**

انصاري کتابپلورنځی / ۰۷۸٦۱۸۰۱۵۸

جدید کتابپلورنځی / ۰۷۸۸۱۰۱۰۷۱

امام غزالي کتابپلورنځی / ۰۷۷۱۴۵۳۸٦۱

**زابل**

حفیظي کتابپلورنځی / ۰۷۰۰۰۳۵۸۸۸

خیر خواه کتابپلورنځی

**پکتیکا**

مجاهد کتابپلورنځی / ۰۷۷۲۲۸۸۹۹۳

پکتیکا کتابپلورنځی / ۰۷۷۵۵۰٦۸۸۸

شال کتابپلورنځی / ۰۷٦۴۹٦۹۸۹۳

**مزارشریف**

ثقافت کتابپلورنځی / ۰۷۷۷۰۵۸۹۹۹

شمال کتابپلورنځی /۰۷۸۲۵۲۸٦۹٤

**کندوز**

مشال کتابپلورنځی /۰۷۸۰۴۸۰۴۸۴

**هلمند**

تاج منور کتابپلورنځی / ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴

ګوهر کتابپلورنځی /۰۷۴۴۴۳۴۴۰۷

**پېښور**

کتاب کور / ۰۰۹۲۳۳۱۹۸۰۱٦۰۰

قلم کتابپلورنځی / ۰۰۹۲۳۱٦۵۰۵۰۵۷۸

**کوټه**

تکتوکتابپلورنځی /۰۰۹۲۳۱۵۸۸۵۹۰۸۵